## دیوښه هدف دلیکلوطرز:

ددی لپاره چی یوهدف ښه واضح او کامل وی دهغه دپاره د لیکلو یوه مشخصه طریقه او روش په کاردی ترڅو دهغه په رعایت سره په مناسبه او صحیح توګه ولیکل شی هغه عمده نکات چی دهدف په ښه لیکلوکی باید مراعات شی په لاندی ډول دی:

۱ـ هدف باید دمعلم پواسطه دشاګردانو له خوا ولیکل شی.

۲ـ په هدف کی باید دپوهیدو پرځای دفعالیت دا جراأ ودفعل څرګندونه وشی.

۳ـ په هدف کی باید دهغه ټولی برخی مراعات شی (شرط، سلوک او معیار ولری).

۴ـ دهدف او ارزیابی وخت باید سره مساوی وی.

۵ـ څرنګه چی هدف دټولو فعالیتونو دحصول څخه عبارت ده نو هغه باید داسی منظم شی ترڅودرسی پلان او ارزیابی دهغه په لیدلوسره خپل خط السیر پیدا اوګان وروروسوی.

## هغه غلطی چی دیوهدف په لیکلوکی منځ ته راځي:

۱ـ یوه عمده غلطی دهدف په لیکلوکی دا ده چی دمعلم فعالیتونه بیانیږی نه دشاګردانو لکه په لاندی مثالوکی:

الف: شاګردانو ته معلم وکولای شی دماضی زمانی درس ورکړی. (غ)

ب: شاګردان وکولای شی چی دحال زمانی دری جملی ولیکی او بیا هغه په صحیح توګه په ماضی زمانه تبدیل کړی. (ص)

په پورتنی اول مثال کی دمعلم فعالیت ذکرشوی دی او په دوهم کی دشاګردفعالیت بیان شوی دی.

۲ـ بله غلطی دهدف په لیکلوکی دا ده چی دشاګردانو دزده کړی د عملی بیانوونکی وی نه دشاګردانو دفعالیت. یعنی دا چی په هغه کی دزده کړی ساحه شامله ده، نه دشاګردانو عملی کاراوفعالیت ساحه.

مثال: الف ـ شاګردان دکمونیزم دالحادی نظریی په نواقصو

پوهشي . (غ)

ب : شاگردان دکمونیزم دفاسدي نظریي عمده نواقص بیان کړي (م)

۳ـ دیوه هدف په لیکلوکي غلطي داهم ده چي مطلب دهدف دیوه نامعلوم لست په شکل غوښتل کیږي نه دیوه حدلرونکي مطلب په ډول.
مثال :
الف : شاگردان دافغانستان دولایتونو په مرکزونو پوهشي. (غ)
ب : دافغانستان د (۲۹) ولایاتو دمرکزونو، نومونه وواثي. (م)
چي پەلومړي مثال کي تنها دموضوع مطلب ته توجه شوي ده.
اوپەدوهم مثال کي دآموزش پەنتیجه باندي ډیره پاملرنه او توجه شوي ده، اوهم تریوه حدپوري دفعالیت دنمایش دڅرگند والي د انجام غوښتنه شوي، نه دیوه نامعلوم اوپټ مفهوم پەډول.
دمثال پەډول دقرآنکریم دقرائت لپاره هدف لیکو :
شاگردان وکولای شي چي دآل عمران دسورت څلورآیتونه بی له
شرط
غلطي تلاوت کړي،
معیار سلوک

دیورقمی اعدادوضرب :
شاگردان وکولای شي چي دیورقمی اعدادودضرب لەاتوسوالونو څخه
شرط
شپږسوالونه حل کړي .
معیار سلوک
اوس ددي لپاره چي مطلب ښه واضح شوي وي پەلاندي مثال کي چي یوآموزشی هدف دي دهغه دري واړه برخي گورو :
مثال: دڅلورم تولگی دساینس پەمضمون کی دنبات موضوع :
هدف : دشاگردانولەخوا دیوه نبات وړاندی کول اودهغەدبیلابیلو برخو
شرط

په گوته کول په داسې شکل چې له دري غلطيو څخه زيا تې و نه کړي ا و
معيا ر

دا فعاليت په ۵ دقيقه کې سرته ورسوي
معيا ر / شرط

له پورته مثا ل څخه واضح کيږي چې که يو هدف دد غو دريو عمده پا رتونو
څخه يو پا رت هم ونلري هغه يو کا مل هدف نه دی. دوخت په هکله با يد و
ويل شي چې کله معيا را و کله شرط گڼل کيږي خودا په ا ستا دپورې ا ړه
لري چې کوم يو يې گڼي يعني که وخت ورته ډېرا هميت درلودنو شرط ا و
که دفعاليت اجرا يې په درست ا وصحيح توگه آرزووه ، نو معيا رگڼل
کيږي لکه دکانکوريه ا متحا نو کې وخت شرط وي ا و په ا کثرو درسي ا رزيا
بيو کې وخت معيا رگڼل کيږي. پس ويلای شو چې: يو سه هدف هغه دی چې
د لاندې اجزا وي په هغه کې واضح بيا ن شوي وي .

مثا ل: شا گردا ن په آخر د درس کې د څه په با ره کې؟ څه وکړي؟
ا و په څو مره وخت کې؟ په څو مره ا ندا زې سره ؟
پورتنې وينا په لاندې هدف کې راځي .

مثا ل: شا گردا ن وکولای شي په آخر د درس کې يو رقمي ا عدا د يو له
شرط
بل څخه تفريق کړي ا ودحل وروسوا لونو څخه دري سوا لونه بې له
سلوک
معيا ر
کومې غلطې څخه په ۵ دقيقو کې حل کړي.
شرط

# دریم فصل

## درسي پلان

دا یو روښانه حقیقت دی او موږ گوروچي په دنیا کې هر ژوندی مخلوق د خپل ژوند د بقا لپاره هلې ځلې کا او فعالیت کوي.

مثلا حیوانات د رزق او روزۍ د پیدا کولو لپاره د ځنګلونو ته ځي او مرغان هم د دانو د پیدا کولو او د ځالو د جوړولو لپاره کله په یوه باغ یا ځای او کله په بل ځای کې گرځي انسانان هم د خپل د نیوي او اخروي ژوند د ښه والي لپاره هلې ځلې کوي، خو دلته یو سوال پیدا کېږي هغه دا چې د انسان او حیوان څه توپیر دی؟ د دې ځواب دا دی چې د انسان او حیوان ترمنځ خورا ډېر توپیرونه دي چې د هغو له جملې څخه یو مهم او غوره توپیر دا دی چې خدای (ج) انسان ته د تعقل، تفکر او تصور، قوه ورکړې ده او همدا راز د ځمکې د آبادولو او د هغې په باره کې د فکر کولو او تصور کولو قدرت هم ورپه برخه کړی دی، دا د دې لپاره چې انسان د خپل راتلونکي اعمال مخکې د کولو څخه تحلیل کړي تر څو نتیجې ته ورسیږي، چې په معاصره اصطلاح کې د عمل څخه مخکې ذهني طرحې ته پلان (تدبیر) وائي.

**پلان:** په لغت کې تدبیر، سنجښت او تصمیم نیول دي وه کار د اجرا لپاره او په اصطلاح کې پلان هغه ذهني طرحه یا نقشه ده چې د یو کار د انجام لپاره د هغه فعالیتونه تنظیموي.

## د درسي پلان تعریف :

درسي پلان هغه ذهني طرحه یا نقشه ده چې د ښوونکي له خوا د زده کوونکوا و ښوونکي ټول فعالیتونه چې په یوه درسي ساعت کې تر سره کوي د اجرا په خاطر په هغه کې درج وي.

## یو درسي پلان دا لاندې عمده کټې او وظیفې لري :

۱ـ د پیچیده او مغلق مطالبو او موادو په ښه توګه ترتیب او تنظیمول.
۲ـ د مختلفو روشونو ټخه کار اخیستل.
۳ـ په درسي فعالیتونو کې شاګردانو ته برخه ورکول.
۴ـ د ښوونکي سره کمک کوي تر څو د درس په ارتباط موا د برابر کړي.
۵ـ د ښوونکي سره کمک کوي تر څو په ډا ډه زړه تدریس وکړي او د شاګردانو لپاره اغیز مندوي.
۶ـ ښوونکي په تدریس کې هدف ته رسوي.

## د یوه درسي پلان په جوړولو کې باید دا لاندې اساسي مراتب په نظر کې ونیول شي :

۱ـ د درس مطلب او مقصد : چې آیا د درس په وخت کې هدف ته نږدې کیږ و او که د هدف نه لرې کیږو .
۲ـ د شاګردانو د دانش سطحه یا موقف پیدا کول او د شاګردانو په سویه هغوی ته درس ورکول .
۳ـ د درسي روشونو انتخاب : د مناسبو درسي روشونو ټخه په خپل تدریس کې کار اخیستل.
۴ـ ارزیابي: د دې لپاره چې پوه شوچې هدف ته رسیدلي یو که نه ؟

## یو درسي پلان دا لاندې مرحلې لري :

الف : د ټولګي ترتیب او تنظیم :

چې په دې برخه کې دا لاندې اجزا وي شاملې دي:

سلام، د احوال پوښتنه، د نظافت لیدنه، د حاضرۍ اخیستل، د درسي

مواد وبرابرول، دشاگردانو منظم کبینول، دکورني وظیفي ليدل، او دانگيزې توليدول.

ب : دتیردرس ارزيابي اودهغه ارتباط له نوي درس سره.

ج : **دنوي درس جريان:**

چي په دې برخه کي دالاندي اجزاوي شاملي دي:

الف : دنوي درس عنوان معرفي کول اودهغه ليکل په تختــــــه باندي.

ب : دنوي درس لوستل دکتاب له مخي.

ج : دنوي درس لوستل په پټه خوله اودنوي لغاتونوحل کول.

د : دنوي درس تشريح اودهغه په عمده نکاتوتاکيدکول اودځينو مناسبوولازموتعيين شووفعاليتونوسرته رسول دښوونکـــي او شاگردانو په واسطه چي استادپه خپل پلان کي پخوا په نظرکي نيولـــي دي . لکه مشق اوتمرين، عملي کارونه ونور.....

هـ : دنوي درس ارزيابي .

و : د نوي درس خلاصه کول.

ز : دکورني وظيفي ورکول.

---

١٦

دیوه درسي پلان نمونه :

درسي پلان

ښوونکی ________ مضمون: ________

ټولگی ________ موضوع: ________

مدرسه ________ تاريخ: ________

اهداف :

| وخت | درسي فعاليتونه / اسلوب | مواد |
|---|---|---|
| وخت په مناسبه ول وېشل | ١ـ مقدمه :<br>الف : دټولگي ترتيب اوتنظيم<br>ب : دتيردرس ارزيابي اودهغه ارتباط له نوي درس سره .<br>٢ـ دنوي درس جريان :<br>الف : دښوونکي فعاليتونه .<br>ب : دشاگردانوفعاليتونه .<br>ج : درسي روشونه .<br>د : خلاصه وارزيابي.<br>هـ : کورني وظيفه . | د موضوع په ارتباط د مناسبو درسي موادو تعين |

ارزيابي :

# عمومي پلان

محترم ښوونکو تاسو ته بهتره معلومه ده چې هر انسان د یوه کار د اجرا کولو څخه یو خاص هدف لري او ددې لپاره چې خپل هدف ته ورسیږي د ځان سره فکر او سنجش کوي او بیا عملاً اقدام کوي، او که چیرې بیله کوم مخکیني سنجش څخه څوک د یوه کار په کولو شروع وکړي شاید ښه او په زړه پوري نتیجه تر لاسه نه کړي او خپل هدف ته هم ونه رسیږي، همدا ډول د ښوونې او روزنې په ساحه کې که چیرې یو ښوونکی د خپل تدریس لپاره منظم پلان ونه لري شاید چې د ښوونې او روزنې اهداف څرنګه چې شایي سرته ونه رسیږي او ښوونکی به د زیاتو مشکلاتو سره مخامخ وي نو د ښوونکو لپاره ضروري ده چې د پلان په جوړولو سره ځان پوه او بیا عملاً ور څخه ګټه واخلي.

څرنګه چې ددې کتاب په تیرو شویو مخونو کې د درسي پلان په هکله ځینې ضروري او لازم معلومات درنو لوستونکو ته تقدیم شول خو اوس غواړو چې په عمومي توګه واضح کړو چې درسي پلان د وخت په لحاظ په څو ډوله دی او بیا د عمومي پلان د جوړولو په هکله لازم معلومات وړاندې کول غواړو.

# پلان دوخت په لحاظ په درې ډوله دی:

- طویل المدت درسی پلان ( کلنی پلان)
- متوسط المدت درسی پلان ( موضوعی پلان)
- قصیرالمدت درسی پلان (دیودرسی واحدپلان)

## دعمومی (کلنی درسي پلان) تعریف:

عمومی درسی پلان دهغوعمومی مفاهیموطرح اونقشه ده چې ښوونکی په هغه کی خپل راتلونکي فعالیتونه درج اوبیا دکال په جریان کی دهغه مطابق دیوه مضمون دتعلیمی نصاب په سرته رسولو کی ورڅخه ، استفاده کوی.

## دعمومي پلان دجوړولو اهمیت اوګټې:

۱ــ داوړدی مودی دتدریس تنظیم .
۲ــ دتدریس لپاره دموادو برابرول.
۳ــ ددرسی موضوعاتوویش دوخت اومودی په تناسب .
۴ــ ددرسی مطالبودښه ارتباط اوتنظیم دلاروچارو پیداکول.
۵ــ دمعلم دپاره داوږدی مودی دطرزالعمل وضاحت .
۶ــ دشاګردانودآموزش اوپرورش دپروسی منظم اومطمئن جاری ساتل.
۷ــ دتدریس لپاره موءثرا ومناسبوطریقوپیداکول.

هغه ورځې اوعمده نکات چې دیوه عمومی پلان په جوړولوکی باید په نظر کې ونیول شي :

څرنګه چې دیوعمومی پلان جوړول ډیری طریقی اوډولونه لری خو مونږدلته دنمونی په توګه دیوه عمومی کلنی درسی پلان جوړول د یوه جدول په شکل واضح کړی دی چې محترم ښوونکی باید دهغه مهمونکاتو په نظرکی نیولوسره خپل کلنی درسی پلان تهیه اوترتیب کړی.

هغه عمده نقاط چې د یوه مضمون د تدریس د عمومي (کلني) پلان په جوړولو کښې باید په نظر کښې ونیول شي

| شمیر | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | مجموعه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| میاشتې | سنبله | میزان | عقرب | قوس | جدي | دلو | حوت | حمل | ثور | ۸ ۱/۲ |
| ټولې ورځې | ۱۷ | ۳۰ | ۳۰ | ۳۰ | ۳۰ | ۳۰ | ۲۹ | ۳۱ | ۳۱ | ۲۵۸ |
| رخصتی | ۰ | ۱ | ۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۲ | ۲ | ۵ |
| جمعی | ۳ | ۴ | ۴ | ۴ | ۵ | ۴ | ۴ | ۵ | ۴ | ۳۷ |
| امتحان | ۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۶ | ۰ | ۰ | ۰ | ۶ | ۱۲ |
| درسی ورځې | ۱۴ | ۲۵ | ۲۶ | ۲۶ | ۱۹ | ۲۶ | ۲۵ | ۲۴ | ۱۹ | ۲۰۴ |
| د ښوونکی رخصتی | ۰ | ۰ | ۱ | ۰ | ۲ | ۰ | ۱ | ۱ | ۰ | ۵ |

| | |
|---|---|
| د ټولو هفتو شمیر | ۲۰۴ − ۵ = ۱۹۹ ټولې درسي ورځې / هفتې ۳۳ = ۶ ÷ ۱۹۹ اوبوه ورځ |
| ټولګی | اول |
| مضمون | حساب |
| ټول درسی ساعتونه | ساعته<br>د حساب د مضمون لپاره ټول تعلیمي کال ۱۳۲ = ۴ × ۳۳<br>په هفته کښې څلور ساعته (۴) تدریس کیږی |
| د کتاب صفحې | صفحې ۳۴ |
| د کتاب باید تدریس شي په څو ساعتونو کښې څومره | که که هره صفحه په ۳ ساعته کښی تدریس شی نو ۳۰ درسی ۳ ۳۰/۳۴ = ۳۴ ÷ ۱۳۲<br>ساعته باقی پاته کیږی ، یوه صفحه کتاب پاته کیږي ۱۳۲ = ۴ × ۳۳<br>دا یوه صفحه کتاب باید ښوونکی په داسی ورځو کښې چې موضوع آسانه وی د وه<br>صفحې تدریس کړي البته په ۴ ساعتونو کښی . |

کال ۱۹۸۹
۱۳۶۸

ص

دلومړۍ ټولګي د(حساب) دمضمون عمومي (کلنی) تدريسي پلان ۱۹۹۰ — ۱۹۸۹ (۲)

| مياشتې / ورځې / هفتې / ساعتونه | سنبله | | | | | ميزان | | | | | عقرب | | | | | قوس | | | | | جدی | | | | | دلو | | | | | حوت | | | | | حمل | | | | | ثور | | | | | کتنې |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | |
| شنبه تاریخ | . | . | . | ۱۸ | ۲۵ | ۱ | ۸ | ۱۵ | ۲۲ | ۲۹ | . | ۶ | ۳ | ۲۰ | ۲۷ | . | ۴ | ۱۱ | ۱۸ | ۲۵ | ۲ | ۷ | ۱۶ | ۲۳ | ۳۰ | . | ۴ | ۱۴ | ۲۱ | ۲۸ | . | ۵ | ۱۲ | ۱۹ | ۲۶ | . | ۴ | ۱۱ | ۱۸ | ۲۵ | ۱ | ۸ | ۱۵ | ۲۲ | ۲۹ | د رخصتۍ ورځ |
| درسي ساعتونه | . | . | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | | . | ۱ | ۱ | ۱ | ■ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | | ۱ | ■ | دښوونکي د رخصتي |
| يکشنبه تاریخ | . | . | . | ۱۹ | ۲۶ | ۲ | ۹ | ۱۶ | ۲۳ | ۳۰ | . | ۷ * | ۱۴ | ۲۱ | ۲۸ | . | ۵ | ۱۲ | ۱۹ | ۲۶ | ۳ | ۱۰ * | ۱۷ | ۲۴ * | . | ۱ | ۸ | ۱۵ | ۲۲ | ۲۹ | . | ۶ | ۱۳ | ۲۰ | ۲۷ | . | ۵ | ۱۲ | ۱۹ | ۲۶ | ۲ | ۷ | ۱۶ | ۲۳ | ۳۰ | يوه پاته درسي ورځ |
| درسي ساعتونه | . | . | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ■ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ■ | ۱ | ■ | . | ۱ | ۱ | ■ | ۱ | ۱ | . | ■ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ■ | يوه پاته درسي ورځ |
| دوشنبه تاریخ | . | . | . | ۲۰ | ۲۷ | ۳ | ۱۰ | ۱۷ | ۲۴ | . | ۱ | ۸ | ۱۵ | ۲۲ | ۲۹ | . | ۶ | ۱۳ | ۲۰ | ۲۷ | ۴ | ۱۱ | ۱۸ | ۲۵ * | . | ۲ | ۹ | ۱۶ | ۲۳ | ۳۰ | . | ۷ | ۱۴ | ۲۱ | ۲۸ | . | ۶ * | ۱۳ | ۲۰ | ۲۷ | ۳ | ۱۰ | ۱۷ | ۲۴ | ۳۱ | |
| درسي ساعتونه | . | . | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ■ | ۱ | ۱ | ■ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ■ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | | ■ | دامتحان ورځ |
| سه‌شنبه تاریخ | . | . | . | ۲۱ | ۲۸ | ۴ | ۱۱ | ۱۸ | ۲۵ | . | ۲ | ۹ | ۱۶ | ۲۳ | ۳۰ | . | ۷ | ۱۴ | ۲۱ | ۲۸ | ۵ | ۱۲ | ۱۹ | ۲۶ * | . | ۳ | ۱۰ | ۱۷ | ۲۴ | . | ۱ | ۸ | ۱۵ | ۲۲ | ۲۹ | . | ۷ | ۱۴ | ۲۱ | ۲۸ | ۴ | ۱۱ | ۱۸ | ۲۵ | . | |
| درسي ساعتونه | . | . | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ■ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | . | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ۱ | ■ | . | |
| چهارشنبه تاریخ | . | . | ۱۵ | ۲۲ | ۲۹ | ۵ | ۱۲ | ۱۹ * | ۲۶ | . | ۳ | ۱۰ | ۱۷ | ۲۴ | . | ۱ | ۸ | ۱۵ | ۲۲ | ۲۹ | ۶ | ۱۳ | ۲۰ | ۲۷ * | . | ۴ | ۱۱ | ۱۸ | ۲۵ | . | ۲ | ۹ | ۱۶ | ۲۳ | - | ۱ | ۸ | ۱۵ | ۲۲ | ۲۹ | ۵ | ۱۲ | - | | | ۱۹۹ درسي ورځې * |
| درسي ساعتونه | . | . | . | . | . | . | . | ■ | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | ■ | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | ■ | . | . | . | . | ■ | . | . | ■ | . | |
| پنجشنبه تاریخ | . | . | ۱۶ | ۲۳ | ۳۰ | ۶ | ۱۳ | ۲۰ | ۲۷ | . | ۴ | ۱۱ | ۱۸ | ۲۵ | . | ۲ | ۹ | ۱۶ | ۲۳ | ۳۰ | ۷ | ۱۴ | ۲۱ | ۲۸ | . | ۵ | ۱۲ | ۱۹ | ۲۶ | . | ۳ | ۱۰ | ۱۷ | ۲۴ | . | ۲ | ۹ | ۱۶ | ۲۳ | ۳۰ | ۶ | ۱۳ | ۲۰ | ۲۷ | . | ۳۳ هفتې |
| درسي ساعتونه | . | . | . | . | . | . | . | ■ | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | ■ | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | . | ■ | . | . | ■ | . | . |
| جمعه تاریخ | . | . | . | ۲ | ۲ | ۴ | ۴ | ۴ | ۴ | ۲ | ۲ | ۳ | ۴ | ۴ | ۴ | | ۴ | ۴ | ۴ | ۴ | ۳ | ۳ | ۴ | ۱ | . | ۳ | ۴ | ۳ | ۴ | ۳ | ۱ | ۳ | ۴ | ۴ | ۴ | . | ۳ | ۴ | ۴ | ۴ | ۴ | ۴ | ۴ | | | |

# لومړی فصل

## ښوونه اوروزنه

## (تعلیم اوتربیه)

علم الانسان مالم یعلمه" سوره علق" پاره ۳۰
آیه ۵

ترجمه : ښوولی دی انسان ته الله (ج) هغه شیان چې ده
وربا ندې علم نه درلود :

لکه څرنگه چې دیوی ټولنی دښه اوبهترژوندلپاره علم او پوهی
ته ضرورت دی ددی هدف دلاسته راوړلو په خاطرپلوما شوما نوته بايد
ښه ښوونه اوروزنه ورکړو نودا سی پوښتنه مطرح کوو :

ښوونه اوروزنه څه شی دی؟

ښوونه اوروزنه " Education " ایجوکیشن دهغه فعالیت څخه
عبارت دی چې څوان نسل يي دراتلونکی نسل یا دهغه نسل لپاره چې
تراوسه دا جتماعی ژوندلپاره ښه آماده نه دی سرته رسوی .

ددې فعالیت هدف دذهنی افکاروپه کاراچول اوپرورش ورکول ،
دمادی اومعنوی شرایطوبرابرول دجامعی له مقتضی سره سم ، په ژوند
کی دی .

ښوونه اوروزنه یا آموزش اوپرورش دعلمی مفهوم په لحاظ یو له
بل سره نږدی دی دتلفظ اوبیان له نظره دتعلیم کلیمه ترتربیـــــی

# د لومړي ټولګي د (حساب) د مضمون د (اول) فصل تدريسي پلان

| ورځې \ میاشتې | سنبله | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | فصل | صفحه | موضوع | ساعات | تاریخ | فصل | صفحه | موضوع | ساعات | تاریخ |
| شنبه | | | د شاګردانو سره تعارف | ١ | ١٣ | ١ | ٢ | د یوه څخه تر شپږو پورې شمېرل | ١ | ٢٥ |
| یکشنبه | ١ | ١ | صفر او ریو د ا څخه تر ٢ پورې شمېرل | ١ | ١٩ | ١ | ٢ | د ا څخه تر ٧ پورې شمېرل | ١ | ٢٥ |
| دوشنبه | ١ | ١ | د یوه څخه تر ۴ پورې شمېرل | ١ | ٢٠ | ١ | ٢ | د ا څخه تر ٨ پورې شمېرل | ١ | ٢٧ |
| سه شنبه | ١ | ١ | د ا څخه تر ۵ پورې شمېرل | ١ | ٢١ | ١ | ٢ | د ا څخه تر ١٠ پورې شمېرل | ١ | ٢٣ |
| چهارشنبه | | | | | ٢٢ | | | | | ٢٩ |
| پنجشنبه | | | | | ٢٣ | | | | | ٣٠ |
| جمعه | | | | ۴ | | | | | ۴ | |

| ورځې \ میاشتې | میزان | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | فصل | صفحه | موضوع | ساعات | تاریخ | فصل | صفحه | موضوع | ساعات | تاریخ |
| شنبه | ١ | ٣ | دکوتو په واسطه د یوه څخه تر ریو پورې شمېرل | ١ | ١ | ١ | ۴ | دکوتو په واسطه د ٣ څخه تر ٧ پورې شمېرل | ١ | ٨ |
| یکشنبه | ١ | ٣ | ترڅلورو پورې شمېرل | ١ | ٢ | ١ | ۴ | د ۴ څخه تر ٨ پورې شمېرل | ١ | ٩ |
| دوشنبه | ١ | ٣ | تر ۵ پورې شمېرل | ١ | ٣ | ١ | ۴ | د ۵ څخه تر ٩ پورې شمېرل | ١ | ١٠ |
| سه شنبه | ١ | ٣ | ترشپږو شمېرل | ١ | ۴ | ١ | ۴ | د ۵ څخه تر ١٠ پورې شمېرل | ١ | |
| چهارشنبه | | | | | ۵ | | | | | ٢ |
| پنجشنبه | | | | | ٦ | | | | | ١٣ |
| جمعه | | | | | ۴ | | | | | ۴ |

| ورځې \ میاشتې | میزان | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | فصل | صفحه | موضوع | ساعات | تاریخ | فصل | صفحه | موضوع | ساعات | تاریخ |
| شنبه | | | د ا څخه تر ٣ پورې د شکلونو له مخې لیکل | ١ | ١٥ | ١ | ٧ | د ا څخه تر ٣ د لیکلو د ترتیب زده کول | ١ | ٢٢ |
| یکشنبه | | | د ۴ او ۵ لیکل د شکلونو له مخې | ١ | ١٢ | ١ | ٧ | د ا څخه تر ۵ پورې د لیکلو ترتیب زده کول | ١ | ٢٣ |
| دوشنبه | | | د ٦، ٧ او ٨ لیکل د شکلونو له مخې | ١ | ١٧ | ١ | ٧ | د ا څخه تر ٨ د لیکلو ترتیب زده کول | ١ | ٢۴ |
| سه شنبه | | | د ٩ او ١٠ لیکل د شکلونو له مخې | ١ | ١٨ | ١ | ٧ | د ا څخه تر ١٠ د لیکلو ترتیب زده کول | ١ | ٢۵ |
| چهارشنبه | | | | | ١٩ | | | | | ٢٦ |
| پنجشنبه | | | | | ٢٠ | | | | | ٢٧ |
| جمعه | | | | | ۴ | | | | ۴ | |

# دلومړي ټولګي د (حساب) د مضمون د (اول) فصل تدریسي پلان

| میاشتې / هفتې | میزان | | | | | | | عقرب | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | فصل | صفحه | موضوع | ساعات | تاریخ | فصل | صفحه | موضوع | ساعات | تاریخ | فصل | صفحه | موضوع | ساعات | تاریخ | فصل | صفحه | موضوع | ساعات | تاریخ |
| شنبه | ۱ | ۸ | دتمرین حل کول | ۱ | ۲۹ | | | | | | | | | | | | | | | |
| یکشنبه | ۱ | ۸ | دتمرین حل کول | ۱ | ۳۰ | | | | | | | | | | | | | | | |
| دوشنبه | | | | | | ۱ | ۸ | دتمرین حل کول | ۱ | ۱ | | | | | | | | | | |
| سه شنبه | | | | | | ۱ | ۸ | د شاګردانو د عمومي مشکلاتو حل کول | ۱ | ۲ | | | | | | | | | | |
| چهارشنبه | | | | | | | | | | ۳ | | | | | | | | | | |
| پنجشنبه | | | | | | | | | | ۴ | | | | | | | | | | |
| جمعه | | | | ۲ | | | | | ۲ | | | | | | | | | | | |

# درسی پلان

معلم: عبدالحبیب
مضمون: فقه (کنزالدقایق)

صنف: ششم
موضوع: دغاه پاکوالی ۱۵

مدرسه: امام ابوحنیفه (رح)
تاریخ: ۱۵/۱۲/۶۸

**هدف:** شاګردان باید په آخر د درس کښې وکولای شي چې د غاه د پاکوالي پنځه مسلې په صحیح توګه بیان کړي.

| وخت | درسی فعالیتونه / طریقه | مواد |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه**<br>**الف - د ټولګی ترتیب او تنظیم:** سلام د احوال "کرانو شاګردانو څه حال مو دی شوک خو به ناروغ نه وي" د نظافت کتل، د حاضري اخیستل، د کورنیو وظیفو لیدل او د تېر درس په باره کښې باید پوښتنې وشي. | |
| ۵ دقیقې | **ب - د تېر درس ارزیابي:** احمد جانه زمونږ تېر درس څه وُ؟ ځواب د غاه پاکوالی، شاباس، محمود جانه په تېر درس کښې موږ څه لوستلي وُ؟ که د اوبو یا پسه یو یا دوه بچي په غاه کښې ولویږي د غاه اوبه نه مرداریږي. آفرین. اسلم جانه د کتاب مثلاً مخ راواړوه و یُنزحُ البیرُ .... یوه جمله د وایه او ترجمه یې کړه .... تر آخره. | کتاب<br>تخته - تخته پاک<br>تباشیر |
| ۲ دقیقې | **۲- د نوي درس جریان:** کرانو شاګردانو په غاه کښې داسی شیان هم لویږي چې د غاه اوبه مرداروي او ناپاکه کړي؟ هو د بسم الله الرّحمٰن الرّحیم په ویلو سره دی د غه عنوان په تخته ولیکل شي" د غاه پاکوالی نور مسایل) | کاغذونه<br>قلمونه |
| ۱۰ دقیقې | **ګروپي کار:** کرانو شاګردانو تاسو اوس شپږ شپږ نفره پنځه ګروپه شئ " ۱-۲-۳-۴-۵ " په د غه کاغذونو کښې ما پنځه سوالونه لیکلي دي تاسو یو یو نفر د ګروپ مشر و ټاکئ او په شریکه په سوالونو مشوره وکړئ او د ګروپ مشر به یې لیکي بیا به د غه کاغذونه ماته راکوئ.<br>**سوالونه:**<br>۱- که په غاه کښې موږک مړ شوی وي د غاه د پاکوالي باره کښې څه باید وکړو؟<br>↓ | |

| | | |
|---|---|---|
| | ۲- که په شاه کښې کوتره مړه شوی وي، د شاه د پاڅوالی باره کښې څه باید وکړو ؟<br>۳- که په شاه کښې پسه مړشوی وي د شاه د پاڅوالی باره کښې څه باید وکړو ؟<br>۴- که حیوان پړسیدلی وي د شاه د پاڅوالی باره کښې څه باید وکړو ؟<br>۵- که حیوان رژیدلی وي د شاه د پاکوالي باره کښې څه باید وکړو ؟ | |
| | **د ګروپي کار نتیجه :** د فکري شورا په اساس د ګروپونو نتیجې ارزیابي کوو او هغه په سپین کاغذ یا توره تخته باندې لیکو . | کتاب |
| ۵ دقیقې | ګرانو شاګردانو اوس خپل کتابونه خلاص کړئ . زمری جانه په ۱۷ مخ کښې دریم خط و وایه " وعشرون دلواً وسطاً . . . . " شاباس اسلم جانه یوه جمله ته و وایه . . . . تر آخره بیا ګرانو شاګردانو اوس به یې زه درته و وایم تاسو خپلو کتابونو ته وګورئ . | |
| ۱۰ دقیقې | ګرانو شاګردانو : اوس دې چارټ ته متوجه شئ چې زه یې درته ترجمه کړم ، وروسته دې د شاګردانو په واسطه ترجمه شي . زلمی جانه یوه جمله ته و وایه او ترجمه یې کړه ؟ محمود جانه ته یې و وایه . . . . تر آخره . | هغه چارټ چې درس په کښې لیکل شوی |
| ۳ دقیقې | **د درس خلاصه :** زمونږ نن درس دا ؤ که په شاه کښې موږک مړشي ۲۰ بوکې او که کوتره مړه شي ۴۰ بوکې که پسه مړ شي پړسیدلی او یا رژیدلی وي د امکان په صورت کښې ټولې او به او که امکان نه وي ۲- میانه بوکې او به له شاه څخه وباسو . | |
| | **ارزیابي :** زلمی جانه که په شاه کښې موږک مړشوی وي د شاه د پاکوالی باره کښې څه باید وکړو؟ اسلم جانه ته د کتاب یوه جمله و وایه او ترجمه یې کړه . . . محمود جانه ته . . . . | |
| ۲ دقیقې | **کورنۍ وظیفه :** تاسو چې کورته لاړشئ د دغو سوالونو ځوابونه به د خپل مسجد له ملا امام څخه زده کوئ بیا به یې زه له تاسو څخه پوښتنې کوم .<br>۱- که په شاه کښې دوه موږکان مړه شوی وي د شاه د پاکوالی باره کښې څه باید وکړو ؟<br>۲- که په شاه کښې پنځه موږکان مړه شوي وي د شاه د پاکوالی باره کښې څه باید وکړو ؟ | |

# درسي پلان

معلم: میرزا محمد          مضمون: حساب

صنف: اول          موضوع: د صفر څخه تر ۴ شمیرل

مدرسه: ابوحنیفه (رح)          تاریخ: ــــ ــــ

اهداف: په آخر درس کښې باید شاګردان وکولای شي چې: a- ووايي چې صفر یعني څه ؟

b- د ۱ څخه تر ۴ پورې شیان او اشکال وشمیري او دا کار ۸۰٪ په صحیح توګه وکړي.

| مواد | درسي فعالیتونه / طریقه | وخت |
|---|---|---|
| | I- مقدمه: | |
| تخته، تباشیر | الف- د ټولګي ترتیب او تنظیم: سلام، د حال او احوال پوښتنه، د شاګردانو منظم کښینول، نظافت، د حاضرۍ لیدل، د کورنۍ وظیفې لیدل. | ۵ دقیقې |
| تخته پاک کتاب، قلم | ب- د تیر درس پوښتنه او د هغه ارتباط له نوي درس سره. د بعضي شیانو پوښتنه لکه دا څه شی دی ؟ ج- دا تباشیر دی. دا څه شی دی ؟ دا قلم دی، په قلم سړی څه کوی ؟ خط لیکی نور څه کوي حساب لیکی. | ۵ دقیقې |
| چاقو | II- د نوي درس جریان: پوښتنه: په قلم باندې سړی څه کوي ؟ ج- خط لیکي. نور څه کوي حساب لیکي. حساب څه ته وايي ؟ ج- شمېرنه وايي. وروسته زمونږ او ستاسی درس هم د صفر څخه تر ۴ پورې شمېرل دي. د نوي درس عنوان په تخته لیکل. بسم الله الرحمٰن الرحیم. | ۲۰ دقیقې |
| د کاغذ قطعې ورې ورې تیږې پانې | د صفر ورښودل، په لاس کښې ورته د چاقو ښودل، دا رنګه پوښتنه کول. څنګه په لاس کښې څه شی دی ؟ ج- چاقو دی. بیا د چاقو لرې کول. اوس څنګه په لاس کښې څه شی شته ؟ څه نه شته. بیا نو رخالي ځای ته صفر وايو. په همدې ترتیب سره نور مثالونه هم باید ورکړل شي. بیا د یو قلم ورته ښودل دا څه شی دی ؟ ج- قلم دی. څو دانې دی ؟ یوه ده. | |
| بوتل | په همدې ترتیب په څو ځلو باندې تکرار. او نورو شیانو په شمېرلو کښې باید ورڅخه استفاده وشي. په همدې ترتیب د ۲، ۳، او ۴ عددونو ور معرفي کول د موادو په واسطه شمېرل. | |
| | ګروپي کار: ټولګي په څلور کسیزه ټولو باندې ویشو. | |
| | ↓ | |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **هدایت :** ګرانو شاګردانو پدې قطی کښې مختلف مواد او شیان شته تاسی به یې وګورئ او بیا به یې هرجنس جلا . جلا کیږدئ . او هرجنس په مشوره سره وشمېرئ په همدې ډول لومړی ګروپ یونفر به ددوهم ګروپ له یونفر څخه پوښتنه وکړي . او د موادو څخه به یو جنس ورته پورته کړي . دا څه شی دی؟ او څو دانې دي؟ په همدی ډول دوهم ګروپ د دریم څخه او دریم ګروپ د څلورم څخه او څلورم ګروپ د اول څخه پوښتنې وکړي .<br>دکتاب څخه استفاده یعنې دکتاب دلومړي مخ د شکلونو ورباندی شمېرل .<br>**د درس خلاصه :** مونږ او تاسې د صف څخه تر څلورو پورې شیان او اشکال او شمېرل . او س زه ګورم چې چا بنه زده کړي دي . | |
| ۵ دقیقې | **ارزیابی :** د شاګردانو څخه د صفر د پیژندلو په هکله پوښتنې او همدا رنګه د نورو شیانو او اشکالو وربانديی شمېرل په عملي توګه سره .<br>**کورنۍ وظیفه :** په کورکښې د ۱ څخه تر ۴ پورې بیل بیل شیان وشمېرئ . او هم سبا ته د ځان سره څلور، څلور کوچنۍ ډبرې راوړي . | |

ارزیابي :

تبصره :

# درسي پلان

معلم : عبدالوکیل — مضمون : ساینس

صنف : څلورم — موضوع : د نبات جوړښت ۲۳

مدرسه : تعلیم او تربیه د آی . آر . سي هنګو — تاریخ : ۱۳٦۹/۱۲/۱۵

**اهداف :** په آخر د درس کښې باید شاګردان وکولای شي :

الف : د نبات ټولې برخې بیان کړي . ب : د هرې برخې وظیفې بیان او هره برخه عملاً په نبات کښې وښيي .

ج - د فعالیتونه شاګردان په ځځود قیقو کښې بې له کومې غلطۍ تر سره کړي .

| وخت | درسي فعالیتونه / طریقه | مواد |
|---|---|---|
| | **I - مقدمه :** | تخته |
| ۵ دقیقې | **الف - ترتیب او تنظیم :** سلام ، د حال او احوال پوښتنه ، د شاګردانو منظم کښېنول ، د نظافت لید نه ، د کورنۍ وظیفې لیدل ( د نبات د اجزاوو او د هغو د وظایفو پوښتنه ) . | تباشیر<br>تخته پاک |
| | **ب -** د تیر درس ارزیابي او د هغه ارتباط له نوي درس سره : | د حاضرۍ کتاب |
| ۵ دقیقې | **الف -** د سوال او ځواب په شکل : شاګردانو ته د یوه نبات وربنودل او د هغه د بیلا بیلو برخو پوښتنه کول او همدارنګه د نبات د هرې برخې د وظیفې په هکله ور څخه پوښتنه کول . | قلم |
| | **II - د نوي درس جریان :** د نن ورځې د درس په هکله معلومات ورکول او دارنګه هدایت ورکول : | کتابچه |
| ۲۵ دقیقې | الف - چې نن مونږ او تاسې نوموړی موضوع ( د نبات جوړښت ) د ټولګي څخه د باندې عملاً مختلف نباتات له نظره تیروو او د نبات هره برخه عملاً په نبات کښې ګورو .<br>ب - ټولګي په ۵ نفري ګروپونو ویشو او د هر ګروپ سرګروپ تعین کوو . او لازم هدایت ورکوو .<br>**هدایت :** ګرانو شاګردانو څرنګه چې د نبات جوړښت مونږ او تاسي په تیر درس کښې وویل اوس له خیره سره د ټولګي څخه د باندې د مدرسې په ساحه کښې مختلف نباتات تاسي ګورئ . نو قلم او کتابچه به د ځان سره واخلئ هر ګروپ کله چې یو نبات ګوري د هغه په هکله به په مشورې سره خپل یادداشت د ځان سره لیکي او کومې برخې د نبات موږ چې پروني ویلي وې هغه به عملاً په نبات کښې له نظره تیروي . او تاسي<br>↓ | |

| | | |
|---|---|---|
| | ددی کارلپاره (   ) وخت لری. زیات فکر به کوي چې نباتاتو ته تاوان او ضرر ورته رسوی . او په آخر کښې به هرګروپ یو داسې نبات چې د هغه په ایستلو تاوان او ضرر ورته رسوی او په آخر کښې به هرګروپ یو داسې نبات چې د هغه په ایستلو تاوان او ضرر نه واقع کیږي د ځان سره راوړي او بیا در څخه پوښتنې کوم.<br>ج : کله چې د سیر علمي څخه ټولګي ته راغله د هرګروپ د شاګردانو څخه داسې پوښتنې کول : | |
| ۸ دقیقې | ګرانو شاګردانو د سیر علمي څخه په خیر راغلئ .<br>۱- څه معلومات مو ترلاسه کړل ؟ د هرګروپ څخه پوښتنه کول .<br>۲- کوم شیان ستاسو خوښ شول ؟<br>۳- څه قسم نباتات مو ولیدل ؟<br>۴- د نبات کومې برخې موچې پروت ویلی وی هغه مو په نباتاتو کښې له نظره تیر کړل ؟<br>۵ - د ځان سره د راوړي نبات په هکله ور څخه پوښتنې کول .<br>د درس خلاصه : د درس د مهمو نقاطو خلاصه کول د ښوونکی له خوا . | |
| ۲ دقیقې | ارزیابي : ښوونکی چې په سیر علمي کښې یو نبات له ځانه سره راوړی د هغه د برخو په هکله پوښتنه .<br>کورنۍ وظیفه : کوم یادداشتونه چې په سیر علمي کښې مو نیولی هغه به په کور کښې پاک نویس کړئ | |

ارزیابي :-

تبصره :-

# درسی پلان

معلم : عبدالوکیل — مضمون : پښتو

صنف : اول — موضوع : ت ـ توره ۴

مدرسه : د آی ـ آر ـ سی تعلیم او تربیه هنګو — تاریخ : ۱۲-۱۲-۱۳۶۸

**اهداف :** په آخر د درس کښې شاګردان وکولای شي :

الف ـ د نیمه توره تخته کلمه جوړه کړي ، ب ـ کلمه ووایي ، ج ـ د کلمو تخته جمله جوړه کړي ، د ـ د کتاب له مخې یې ووایي او نو موري فعالیتونه ٪۸۰ صحیح کړي .

| مواد | درسی فعالیتونه / طریقه | وخت |
|---|---|---|
| | **I ـ مقدمه :** | |
| د حاضرۍ کتاب، قلم، کتابچه | **الف ـ د ټولګي ترتیب او تنظیم :** | ۵ دقیقې |
| | الف ـ سلام ، د حال او احوال پوښتنه ، د نظافت لیدنه ، د شاګردانو منظم کول ، د حاضرۍ لیدنه | |
| تخته | د کورنۍ کار کتنه ، بنه شاګردانو ما درته ویلي وو چې درس به یکځ اوس زه ګورم . | |
| تباشیر | ب ـ د تیر درس ارزیابي او د هغه ارتباط له نوي درس سره . | ۵ دقیقې |
| تخته پاک | د تیر درس کلمې په وړو وړو کارتونو کښې لیکل او د کارت په ورښودلو سره ور تخته پوښتنه | |
| کتاب | کول یعنې دا څه لیکل شوي ؟ پاکوالی ـ بنه ـ دی . | |
| واړه واړه | د کتاب له مخې په شاګردانو لوستل . | |
| کارتونه | پوښتنه کول په الفبا کښې (د پ په حرف پسې کوم حرف دی) د (ت ـ توره ) ده . | |
| د تورې رسم | **II ـ د نوی درس جریان :** | ۲۱ دقیقې |
| | **الف ـ** د تورې د رسم ورښودل دا څه شی دی ؟ شاګرد ځواب وایي داتوره ده . | |
| د نیمه حروفو کارتونه | بنه نو زمونږ او ستاسې نننی درس ( ت ـ توره ده ) په تخته به و لیکل شي . | |
| | ب ـ نیمه حروف چې مخکې په وړو وړو کاغذو لیکل شوي په میز ورته اچول یا په یوه تار کښې ورته | |
| د تختې تار | ځړول او یو شاګرد راغوښتل او ورته ویل چې ته په دې کښې نیمه ت پیدا که هغه به یوځا تار | |
| | کښې ځړول بیا د بل تخته د (و) د حرف او د بل تخته د (ی) د حرف او د بل تخته د (ه) د حرف پوښتنه | |
| | ↓ | |

| | | |
|---|---|---|
| | او پیداکول او دهغو ځړول ترڅو کلمه د (توره) ورځنه جوړه شي دا کلمه په خوښتو شاګردانو<br>ویل په همدې ترتیب د مکملې جملې جوړول او دهغې ویل په شاګردانو .<br>ج ـ دکتاب له مخې په شاګردانو ویل، بیا پخپله د معلم له خوا دکتاب لوستل په لوړ آواز . | |
| ۹ دقیقې | ګروپي کار : شاګردان ۴، ۴ تنه ګروپ ، ګروپ کول په هرګروپ نوم ایښودل اومشر<br>یې ورته معلومول .<br>هدایت : ګرانو شاګردانو په دې ورقوکښې دری کربنې لیکل شوی په یوه کربنه کښې د<br>احمد په بله کربنه کښې د (توری) کلمه او په بله کربنه کښې د (لری) کلمه ده ، تاسې په مشوره<br>سره نوموړې کلمې پیداکړئ او ستاسو مشر به له هغه څخه خط تاؤکړي تاسې ددی کار لپاره<br>۹ دقیقې وخت لری کله چې کارختم شو ښوونکی به د هغوی کار وګوري او د شاګردانو غلطی<br>به د شاګردانو له خوا اصلاح کړي .<br>بیا د نوموړو کلمو ورباندی لیکل د سلیټ په تخته باندی او د ښوونکي له خوا د هغو<br>لیدنه | |
| ۱ دقیقه | د درس خلاصه : زمونږ او ستاسی درس، ت توره ـ احمد توره لري ؤ . | |
| ۴ دقیقې | ارزیابي : په شاګردانو دکتاب له مخې لوستل او د نیمه حروفو د ترکیب څخه کلمه ـ<br>ورباندی جوړول .<br>کورنۍ وظیفه : نوی درس به په کورکښې په خپلو کتابچوکښې ۵ ، ۵ واری ولیکئ او<br>سبا به یې راوړئ . | |

مقدمه‌ده، لاکن په عمل کې تربیه دتعلیم څخه مقدمه‌ده چې ددوا ړو جلا والی هیڅ امکان نه‌لري اویودبل لازم او ملزوم دی.
تربیه : دکوچني آماده‌کول دتعلیم اوزده‌کړې لپاره، اویومطلوب او مثبت تغییر راوستل په هغه‌کې دتربیې څخه عبارت دی.
یا په بل عبارت : دکوچني پرورش دهغه‌دوجودپه‌ټولوبرخو" ناحیو"کې دتربیت څخه عبارت دی. دکوچني" ماشوم" وجودمتعددجهتونه لري نو په همدی ډول دهغه‌تربیت اوپرورش هم ددی جهاتوله‌مخی مختلف دی.
۱- بدني پرورش : ددی لپاره‌چې کوچنی سالم اوپیاوړی وی‌اوکولای شي دبیماریوسره مقاومت وکړي.
۲- عقلي پرورش : ترڅودکوچني دفکراوادراک سطح لوړه‌شي، او د اشیاء و اوامورا تو په نسبت دصحیح رائې اوعمیق اوژورنظرخاوند او په منطقي استدلالونوتوانائی پیدا کړي.
۳- اخلاقي پرورش : ترڅوکوچنی دانسانیت په‌ښوفضائلوآراسته شي، اودقوي اومحکمي ارادې خاوندوګرځي یعني داسلامي فضائلوپه‌اساس دښواونیکوخویونوخښتن شي، کله‌چې دیوی جامعې افراددجسم، روح اوعقل له‌نظره‌سالم وي هغه‌جامعه‌به‌مترقي اودانحراف څخه په امن وي.

دتربیت وظیفه‌دادی چې دافرادوروانی سالموالی وساتي.

همدارنګه‌تربیت غواړي فردته‌داسې پرورش ورکړي چې خپل ځان په‌ټولنه‌کې منسجم کړي. اودټولني دافرادوپه‌مینځ کې چې نوموړی هم یوله‌هغوڅخه‌دی بریالی شي.

داسې ویلای شو: لکه‌څرنګه‌چې دبدن لپاره‌خواړه" غذا" ضرور دی، همداشان دتربیت ضرورت هم دوجودلپاره‌دغذاڅخه‌کم نه‌دی.

داسلام دمقدس دین له‌نظره‌دتربیت اساسي هدف دواحدخدای(ج) دبندګي اوپرستش څخه عبارت دی لکه‌چې لوی اومتعال خدای(ج) په خپل کلام کې داسې فرمایلي دی:

" وما خلقت الجن والانس الا لیعبدون ۵"

ترجمه : اونه‌دی پیداکړي ماجن اوانسانان مګرلپاره د عبادت .

دخدای(ج) پرستش دتوحیداووحدانیت په مسیرکې دحرکت کولو معنی لري، څوک چې حکیم، عادل اومهربان خدای(ج) ته‌تسلیم شي اودهغه‌بندګي قبوله‌کړي دانسانیت لوړه‌اوبهترینه‌انګیزه‌یې پخپل

# پلان درسي

معلم: محمد نعیم — مضمون: دری

صنف: چهارم — موضوع: اندرز صفحه (۴۲)

مدرسه: امام ابوحنیفه (رح) — تاریخ: ۱۰/۵/۹۰

اهداف: شاگردان درآخیر درس بتوانند کتاب را از روی بخوانند لغات جدید آنرا معنیٰ و ٪ ۷۵ درجملات مناسب استعمال بنمایند ومطلب درس رابیان کنند.

| وخت | درسی فعالیتونه / طریقه | مواد |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:** ترتیب وتنظیم: سلام، احوال پرسې، حاضرې، نظافت، کارخانگی من برایتان گفته بودم که درس گذشته رابه خط خوب درکتابچه های تان بنویسید حالا دیده می شود. | تباشیر، تخته تخته پاک، چارت |
| ۵ دقیقې | ارزیابې درس گذشته، لغات درس گذشته رابه شکل انفرادی بالای شاگردان معنی می کنم. شریف جان خوب احمد جان شما بگوئید که پدر برای فرزند ش چه گفت؟ نصیحت کرد. بسیار خوب اسد جان نصیحت دیگر نام هم دارد بلی: (پند) بسیار خوب لطیف جان شما هم کدام نام رابگوئید (توصیه) بسیار خوب یک نام دیگرآن (اندرز) آه بسیار عالی درس امروز ماهم اندرزی باشد. | کتاب، کارت های خورد، تخته سیاه |
| ۵ دقیقی | **بخش لغات:** الف - کلمات جدید «لغت ها» (اندرز، سوگند، دشنام، بی هوده وحقیر) درکارت ها نوشته شده به نوبت به شاگردان نشان داده می شود تاازطرف شاگردان خوانده شوند وهرکلمه راچند شاگرد بخواند تاخوب خوانده بتوانند بعد معنی هرکدام پس ازخواندن آن اول توسط شاگردان بازهم درصورت ضرورت توسط معلم گفته می شود. | کلان کارت های خورد، قلم، کتابچه |
| ۱۵ دقیقې | ب - بخش قرائت، درصورتیکه صنف ضعیف یامتوسط باشد ذیلاً صورت میگیرد. ۱- معلم کتاب رامی خواند وشاگردان صرف گوش می کنند. | |

| | |
|---|---|
| | ۲- معلم کتاب رامی خواند وشاگردان کتاب را دیده گوش میکنند (۱-۲ بار) . |
| | ۳- شاگردان کتاب را خاموشانه مطالعه می‌کنند ولغات یا کلمات مشکل را ازمعلم می پرسند ومعلم لغات رابالای تخته سیاه نوشته می نماید . |
| | ۴- لغات بالای تخته راحل نموده به کمک وهمکاری خو شاگردان جمله نیزمی سازند . |
| | ۵- متن کتاب راشاگردان قطعه ازهر لین وهرجا می خوانند . |
| | ج- درس راتوسط سوالات از شاگردان ارزیابی میکنند . ۱- فریدون شما بگوئید که خود راباید به چه عادت بدهید؟ به راستگویی . ۲- حمید جان بگوئید که خود راشما باید ازچه پرهیزکنید؟ (از سوگند خوردن) . ۳- نورالله جان شما بگوئید که ما باید احترام راکی داشته باشیم (مادر ، پدر ، دانشمندان ، بزرگان) . |
| | د- درس قرائت شده وکارهای مربوطه آنرا خلاصه می نماید ومطلب راخودش یا توسط شاگردان واضح سازند . ۱- ما باید خودرا به راستگویی عادت بدهیم وازسوگند ودروغ گفتن پرهیزکنیم . ۲- سخنان بی هوده وبی جانگوئیم! درست است . ۳- بزرگان ودانشمندان احترام کرد وازنادان وبی تربیت دوری کنیم "صحیح است" . |
| ۵ دقیقی | هـ- بخش انشاء : معلم به طورگروپی از مجموع کلمات نوشته شده املایی توسط شاگردان راجع به موضوع طوری تعین میگردد که : |
| ۵ دقیقی | ۱- کلمات تعین شده (سوگند ، دشنام ، حقیر ، پرهیز) راتوسط کارت نشان داده درتخته بعد ازخواندن شاگردان یادداشت می کنند . ۲- شاگردان رادرگروپ های ( ) نفری وظیفه میدهدکه راجع به (بچهٔ باتربیت) ازهمین کلمات یادداشت شده درتخته استفاده نموده یک مضمون ۴ سطری به طورمشورهٔ بنویسند . |
| | ۳- منشی یاسرگروپ مضمون خودهاپیش روی صنف قرائت میکنند معلم نوشته قبلی خود راپیش روی صنف درتخته قرارمیدهد وچندین بارتوسط شاگردان میخواند . |
| | بخش املاء : معلم ازهمان مضمون نوشته شده املائی گویند معلم به طرف آخرصنف میرود شاگردان پشت خود راطرف تخته دورداده روی خود راطرف استاد نموده استاد ازروی تخته برای شاگردان املاء میگویند ختم املا ، شاگردان روی خود راطرف تخته دورداده بعد نوشته خود را با تخته تطبیق وصحیح میکند جای راکه غلط نموده بود نمره زده باز صحیح آنرا چندین باربنویسید . |
| ۵ دقیقی | و- ارزیابی املاء : درآخر به طورمسابقه گروپی یادسته جمعی بانوشتن کلمات (که اول آن ص ، مابین آن ص ، وآخرآن ص باشد) |

ز- کارخانگی : داده میشود (صبر ، تصویر ، خلاص) کلمات کارشده راسه سه باردرکتابچه های تان بنویسید و فردابا خود بیاورید . ۲۸

# څلورم فصل

## اصول تدريس .

دا يوځرگند حقيقت دی چې انسانان هر کار چې کوی بايد د هغه کار په اصولو بوه وی او که چيری د کار په اصولو پوه نه وی د هغه څخه مثبته نتيجه نشی اخستلای .

د مثال په ډول هر څوک د ريوری نشی کولای خو هغه څوک يې کولای شی چې د ډريوری په اصولو پوه وی همدا راز هر څوک ښه معلمی نشی کولای خو هغه څوک ښه معلمی کولای شی چې د تدريس په اصولو پوه وی نو دا دی د اصول تدريس په باره کی څه ناڅه معلومات وړاندی کوو .

**اصول:** جمع د اصل او په لغت کی د بيخ ــ قانون ــ روش ، ريښی او قواعدو معنی ورکوی په تعليم او تربيه کی اصول هغه يوه سلسله منظم قوانين او مقررات دی چې استاد ديوی موضوع په تدريس کی تری کار اخلی او په نتيجه کی يې د تدريس هدف ته رسوی .

**تدريس:** عبارت دی د شاگردانو له پيژندنی او رهنمائی څخه په فردی او اجتماعی ډول سره ، دا تعريف داسی معنی لری چې معلم د خپلو تجربو زده کړه داسی ترتيب او تنظيم کړی چې د شاگردانو د سالمی او اسلامی روزنی درشد او انکشاف باعث وگرځی او خاصتاً هغوی درا تلونکی ښه ژوندا و خپلی اسلامی جامعی لپاره آماده شی او وکولای شی چې خپل دين ، مذهب او هيوا د ته د خدمت مصدر وگرځی . او س موږ چې اصول او تدريس وپيژاندنو اصول تدريس داسی تعريفوو .

**تعریف:** اصول تدریس هغه یوه سلسله منظم تعمیری فعالیتونه دی چې ښوونکی او شاگردانو دواړه د تدریس هدف ته رسوي، یا په بل عبارت:

د ښوونکوا وشاگردانو مختلف متقابل اعمال د آموزشي فعالیتونو د سرته رسولو په خاطر په آموزشي وضعه (تولگی) کی عبارت د تدریس له اصولو څخه دی.

اصول تدریس کولای شو، د میتود تدریس، روش تدریس د تدریس فن د تدریس طریقی په نومونو هم یاد کړو. همدا رنگه میتود یا روش داسی هم تعریفوو:

د یوه کار دانجا مولو لپاره د دلازمو مراحلو تیرولو ته میتود وایی.

مثلاً" د (ب) توری شاگردانو ته تدریس کووا وس کوم لازم فعالیتونه او درسی مواد (وسایل) چی په آسانه توگه او لږ وخت کی شاگردانو ته د (ب) زده کړه ورکوی عبارت د میتود څخه دی. اصول تدریس ډیر اقسام لری چی مونږ یوا ځی د څو روشونو نومونه اخلو:

۱- لکچر ۲- مشق او تمرین ۳- نمایش ۴- سوال او جواب ۵- مسابقه ۶- د نقش لوبول ۷- سیر علمی ۸- گروپی کار ۹- عملی کارونه و نور...

په پورتنیو څینو روشونو کی معلم مرکز د فعالیت وی مثلا د لکچر روش چی ټول کار معلم کوی او شاگردان په هغه کی لږ برخه اخلی هغه روشونه چی معلم د فعالیت مرکزوی د زاړه تدریس په نامه یادیږی او په کومو روشونو کی چی شاگردان مرکز د فعالیت وی په دغه روشونو کی شاگرد په تدریسی فعالیتونو کی زیاته برخه اخلی او دا ټول روشونه د نوی تدریس طریقی په نوم یادوی. د نوی او زړی طریقی توپیرونه په لاندی ډول دی:

(تدریس د نوی او زړی طریقی ترمنځ توپیر)

| معلم د تدریس د مرکز په حیث (زړه طریقه) | شاگرد د تدریس د مرکز په حیث (نوی طریقه) |
| --- | --- |
| ۱- ټول معلومات (علم او دانش) ښوونکی له خپل ځان سره لري او شاگردان په یوه طریقه آموزش او زده کړه کوی. | ۱- شاگردان په انفرادی ډول فعال وی او کار کوی خپل نظر یات احساسات، تجارب، ضروریات او گټی وایی او عملی کوی ئی |
| ۲- شاگرد په هیڅ شی نه پوهیږی او آموزش په غیر فعال ډول هغه | ۲- ښوونکی یوا ځی دلار ښوونکی حیثیت لری او یوا ځی هدایت |

ته انتقال مومي.
٣- يوا ځې ښوونکې فعال وي او درس ورکوي.
٤- دشاگرد په دماغ فشار زيادوي او دموضوع په هکله ډير مثالونه نه ويل کيږي
٥- پخوا به يو مطلب يا موضوع په ميخانيکي ډول دمعلم لخوا د کاغذ يا کتاب له مخې لوستل کيده ټول شاگردان به بيکاره ناست وو بيا به يوه شاگرد لرگي واخيست او په نورو به يې تکرار کاوه او معلم به کرار ناست وه.
٦- استاد منظم درسي پلان نه درلود، درسي موادنه وو او کوم خاص ترتيب موجود نه وو.
٧- ښوونکي د درس ورکولو مرکز وي او شاگرد ته وخت نه ورکول کيږي.
٨- په ماشوم ويره وي درس ميخانيکي زده کوي او عملي جنبه نه لري.
٩- شاگرد له تجربو څخه نه خبريږي او تجربې هغه ته انتقال نه مومي.
١٠- شاگرد ته خطاب زيات کيږي او عملي کار کم وي.
١١- زده کړه صورت نيسي او که يې نه نيسي دا خبره معلم ته کوم اهميت نلري، معلم درس ورکوي او په مخ ځي.

ورکوي ټول کار او فعاليت شاگردان کوي.
٣- ټول فعاليت شاگردان سرته رسوي.
٤- دشاگرد په دماغ فشار کم وي د مثال په واسطه موضوع درک کوي.
٥- په اوسني طريقه کې يو مطلب په شکل دتصويرکې روښانه او بيا دهغه په باره کې يو مطلب جوړيږي او دا کار دشاگردانو په واسطه سرته رسيږي. ميخانيکي شکل نلري او شاگرد برخه په کې اخلي.
٦- استاد منظم درسي پلان لري او د درس په ارتباط لازم درسي مواد تهيه او يو خاص ترتيب ورته، استعمالوي
٧- شاگرد د درس مرکز وي او اکثره کارونه سرته رسوي.
٨- ماشوم ويره نلري درس په ميخانيکي ډول نه وي شاگرد عملي کار کوي.
٩- شاگرد ته نوي شيان طريقې او مثالونه ويل کيږي او تجربې هغه ته انتقال مومي.
١٠- شاگرد ته خطاب کم کيږي او عملي، کار زيات کوي.
١١- زده کړه په ښه قسم ښه صورت نيسي دا موقع شاگرد ته ورکوو چې هغه ښه زده کړي.

۱۲- شاگردانوته زیات شیان ویل کیږی اوهغه لږیاده کوی کمزوری (ضعیف) شاگرددا کار نشی کولای.

۱۳- شاگردیواځی اوتنها ناست وی اودلیدونکی اوریدونکی مثال لری

۱۲- شاگردته کم شیان ویل کیږی بایدپه خپله شاگردفکروکړی اوخپل فکرپه کاروا چوی اوځه زده کړی.

۱۳- شاگردیواځی اوتنها نه وی بلکه دټولو سره مشترک اویوځای کارکوی.

باید ښوونکی خپل درس داسی عیارکړی چی په هغه شاگرد زیاته برخه واخلی اوفعالیت وکړی اوله هغه روش څخه په خپل تدریس کی استفاده وکړی چی ښوونکی اوشاگردان ژرهدف ته رسوی . لکه څرنگه چی مخکی وویل شواصول تدریس ډیراقسام لری خودلته یواځی څلور روښونه ترمطالعی لاندی نیسو :

۱- سوال اوجواب .

۲- مسابقه .

۳- دنقش لوبول.

۴- گروپی کار .

۱- **دسوال اوځواب اصول :** په دی اصول کی درسی موضوعات په کوچنیو برخوویشل کیږی اوپه هره برخه کی یی سوالونه طرحه کیږی، سوالونه ډیراقسام لری ځینی سوالونه لنډ، ځینی متوسط اوځینی اوږدځواب لری . مثالونه ته لمونځ کوی ؟ ځواب ، هو

دمسلمانی دوهمه بنا څه شی ده؟ دمسلمانی دوهمه بنا لمونځ ده .

دمسلمانی پنځه بناوی وایه؟ ځواب : دمسلمانی پنځه بناوی

۱- کلیمه ۲- لمونځ ۳- روژه ۴- زکات ۵- حج دی .

په پورتنیو مثالونوکی دلومړی سوال ځواب یواځی په (هو) سره ورکړ شویدی خودوهم متوسط اودریم یی نسبتاً اوږدځواب لری .

خو ښوونکی بایدخپل کاردآسانتیا په خاطرداسی سوالونه طرح نکړی چی هغه ډیرساده وی تفکراواستدلال ته ضرورت ونه لری بلکه ښه به داوی چی د موضوع دهدف په نظرکی نیولوسره دمختلفوسوالونوڅخه په شعوری اوهدفمندانه ډول سره گټه واخیستلای شی.

دسوال اوځواب په اصول کی تقریباً ۵۰٪ حلم ۱۰ ۵۰٪ شاگردمرکزدفعالیت وی،

هغه‌نکات چې دسوال اوځواب په اصول کې بایدپه‌نظرکې ونیول
شي په‌لاندې ډول دي :

۱ـ ښوونکی بایدداسې سوال وکړي چې‌شاگرددسوال په‌مفهوم پوه‌شي.

۲ـ کله‌چې یوشاگردسوال کوي دهغه‌سوال بل شاگردته‌راجع کړي چې ځواب ورکړي.

۳ـ شاگردانوته‌موقع ورکړه‌شي چې یوپربل سوال وکړي.

۴ـ دسوال اوځواب په‌وخت کې بایدښوونکی داصلي موضوع څخه خارج نشي.

۵ـ په‌سوال اوځواب کې بایدټولگی اکثروشاگردانوته‌برخه‌ورکړشي.

۶ـ هغه‌شاگردچې همیشه‌غواړي سوال ته‌ځواب ووايي اودنوروشاگردانوځواب ورکولوموقع اوچانس له‌مینځه‌وړي بایدکنترول شي.

۷ـ څرنگه‌چې دسوال اوځواب اصول زیات وخت نیسي نوښوونکی باید وخت په‌نظرکې ونیسي.

۸ـ ښوونکی بایدهغه‌شاگردچې په‌سوال اوځواب کې برخه‌نه‌اخلي هغه په‌سوال اوځواب کې شامل کړي.

۹ـ ښوونکی بایدشاگرددغلط ځواب ورکولوپه‌مقابل کې تهدیدنکړي.

۲ـ **دمسابقې روش** : دتدریس له‌اصولوڅخه‌یوهم دمسابقې اصول دی په دې میتودکې یوگروپ شاگردان کوښش کوي چې دبل گروپ څخه مسابقه وگټي په‌دې روش کې شاگردان زیات فعال اودفعالیت مرکزگرځي ، په‌دې اصول کې شاگردان په دوگروپونوویشل کیږي اودهرگروپ څخه په‌مساوي ډول شاگردان انتخابیږي له‌دغه‌روش څخه‌په‌ټیټو او لوړو ټولگیوکې کاراخیستل کیږي.

دټولگي دشاگردانوترتیبول بایدپه‌لاندې ډول وي :



نوټ :

د ښوونکي علامه ( ○ )

دزده کوونکي علامه ( * )

هغه نکات چې دمسابقې په روش کې باید په نظرکې ونیول شي :

۱ـ دمسابقې هدایت باید واضح وي.

۲ـ دمسابقې په وخت کې صف باید کنترول شي.

۳ـ دنمروپه توزیع کې باید عدالت وشي او ښوونکی دیوګروپ طرفداري ونکړي.

۴ـ دمسابقې سوالونه باید له آسانه څخه ترمشکله پورې وي اودهرګروپ څخه برابرسوال وشي.

۵ـ په مسابقه کې یوشاګردله بل څخه سوال کوي اوکه شاګردسوال ونشي کړای خپل معلم سوال کوي.

۶ـ په آخرکې دمسابقې نتیجه اعلان شي.

۳ـ **دنقش لوبولو روش** : دنقش لوبول هم دزده کړې لپاره یوه موثره لاره ده چه په دې روش کې شاګردان په خپله برخه اخلي اوهغه لوستل شوي درسي موضوع چې دتمثیل وړوي دحقیقي صحنې په ډول تمثیلوي دنقش لوبولو مطلب دادی چې یوګروپ شاګردان عملاً کارکوي او په نوروشاګردانو ئې تاثیرکوي په دې روش کې شاګردان ډیرې دلچسپي اظهارکوي مثلاً :

ښوونکي په دنیات کې دجماعت لمونځ درس ورکوي یوزده کوونکی دملا امام په نقش او څو تنه نوردمقتدیانونقش لوبوي اوعملاً لمونځ اداکوي .

هغه نکات چې ښوونکی یې باید دنقش لوبولو په وخت کې په نظر کې ونیسي :

۱ـ لدې روش څخه هغه وخت باید استفاده وشي چې خلک یې بدنه وینې.

۲ـ هغه مواد چې دنقش لوبولولپاره ضروري دي باید مخکې تیارشي.

۳ـ ښوونکی دشاګردانوته دنقش لوبولو ښوونه وکړي.

۴ـ ښوونکی باید دصنف کنترول په نظرکې ولري.

۵ـ په رول پلی کې باید شاګردانوته واضح هدایت ورکړشي چې څوک په کوم نقش کې کارکوي اوکوم کارونه اوڅه وخت به یې کوي.

۶ـ په رول پلی کې باید داسې شاګردان انتخاب شي چې داجرا کولو


د تدریس اصول
ښوونکي د فعالیت مرکز
زده کوونکي د فعالیت مرکز
لکچر (خطابه)
تکرار
نمایش
سوال او جواب
مسابقه
نقش اجرا کول
عملي تشریح
ګروپي کار
عملي کار

هغه عمده نکات چې ښوونکي یې د ګروپي کار د اجرا په وخت کې باید په نظر کې ولري؛

۱ـ د ګروپو تعداد باید د ۴ او ۶ تنو تر منځ وي،

۲ ـ د ګروپي کار هدایت باید ښه واضح وي،

۳ ـ په ګروپي کار کې باید شاګردان د ګروپ کې کښېنول شي.

۴ ـ د ګروپو تر منځ باید فاصله وي چې ښوونکی د هغو په منځ کې وګرځي،

۵ ـ ښوونکی د ګروپ پر نظارت کوي او د هغوی پوښتنو ته یې ځواب وایي،

۶ ـ په ګروپي کار کې باید شاګردانو ته داسې موضوع ورکړل شي چې د اجرا قدرت یې ولري،

۷ ـ په نورو ګروپي کارونو کې باید شاګردان تغیر او تبدیل شي.

۸ ـ په ګروپي کار کې معین وخت ورکول کېږي،

۹ ـ د ګروپي کار په پای کې باید نتیجه اعلان شي،

ټولګی



<u>ګروپي کار</u>

لومړی ګروپ

پنځم ګروپ




دوهم ګروپ

څلورم ګروپ

دریم ګروپ

خان حاکم گرځولی ده.

په اسلام کی دتربیت هدف دښه او بهتر ژوندخوا ته میلان کول د ایمان اودخدای(ج) درضا ترسیوری لاندی دی.

تعلیم: دمعلوماتو تلقین او وصال دشاګردانو اذهانو ته دتعلیم څخه عبارت دی.

یا په بل عبارت: ښوونکی دخپل تعلیمی دندی په مسیر کی کوشش کوی چی دشاګردانو اذهان په معلوماتو او معارفو ډک کړی، او کوښښ کوی چی دتربیت له لاری څخه دانسان داخلی قوا او استعدادونو ته دبحث او تحقیق لاره خلاصه کړی.

یاداسی وایو تعلیم دعلم زده کول دی، اویا هغه علوم چی د کوچنی دراتلونکی ژوندلپاره ګټور دی اوهغه تول مشکلات چی دکوچنی په راتلونکی ژوندکی راځی له مینځه یوسی.

- ترټولو علوموڅخه دمخه باید لومړی دینی اومذهبی علوم کوچنیانو ته وښودل شی داځکه چی داسلام مقدس دین تعلیم او تعلم ته ډیر زیات ارزښت ورکړی دی اوانسانان یی دعلم زده کړی ته دعوت کړی دی.

داسلام دمبارک دین هدف اوهمدارنګه داسلامی ښوونیو عمده جزداسلامی امت عالموالی دی، ددینی علوموزده کړه پر مسلمانانو فرض ده او الله(ج) دعلم پواسطه دانسانانو درجی لوړوی لکه چی به خپل پاک کلام کی یی فرمایلی دی:

" یرفع الله الذین آمنوا منکم والذین اوتوا العلم درجات ط" سورة المجادله پاره ۲۸ آیه ۱۱

ترجمه: پورته کوی خدای(ج) هغه کسان چی ایمان راوړی له تاسی څخه، اوهغه کسان چی علم ورته ورکړشویدی(درجی ئی لوړوی)

نو په دی اساس دآسمانی ادیانو عمده، مهم اولوړاهداف دبشر دښوونی اوروزنی یعنی دنفس دتهذیب، دتمایلاتو اوغرایزوسموالی اودکمال لوړی سطحې ته دبشر دروح اوعقل اوچتول دی.

یا په بل عبارت ددین هدف دمتدینوافرادوروزنه ده.

متدین هغه څوک دی چی ددین معنی اوحقیقت یی درک کړی وی اودینی تعلیمات یی دژوندلاربنود وی.

متدین اوبا تربیت شخص خپلو عمالو ته خاصه پاملرنه کوی او په خپلو عمالوکی خطاء او اوغلطوته لارنه ورکوی. لکه څرنګه چی خدای(ج)

قدرت یې ولري.
۷ـ دنقش لوبول د ټولګي په داسې مناسب ځای کې اجرا شي چې ټول شاګردان یې ووینې.
نوټ: رول پلې یا دنقش لوبول یوه معنی لري.

۴ـ **ګروپي روش:** په تدریس کې ګروپي کار د شاګردانو د ښې زده کړې په خاطر عملي کیږي یعنې دیوه ټولګي شاګردان په څو ګروپونو باندې ویشل کیږي، ترڅو هر ګروپ په هغه موضوع باندې چې ښوونکی یې ورکوي په مشترک ډول کار او فعالیت وکړي خپل افکار او نظریات سره یوځای او شریک کړي او د موضوع د زده کړې په منظور یو له بل څخه پوښتنې وکړي او بحث او مناقشه صورت ونیسي، ښوونکی دلارښود او مشاهد حیثیت لري او که په ګروپونو کې مشکل پیښ شي سوالونو ته ځواب ورکوي، تجربو ثابته کړې ده چې تر انفرادي زده کړې ګروپي زده کړه ښه موثریت لري او اکثریت شاګردان تعیین شوې موضوع په آسانۍ سره بې له ویرې زده کوي.
هغه عمده نکات چې ښوونکی یې د ګروپي کار د اجرا په وخت کې باید په نظر کې ولري:
۱ـ دګروپو تعداد باید د ۳ او ۶ تنو تر منځ وي.
۲ـ دګروپي کار هدایت باید ښه واضح وي.
۳ـ په ګروپي کار کې باید شاګردان دائروي کښینول شي.
۴ـ دګروپو تر منځ باید فاصله وي چې ښوونکی د هغوی په منځ کې وګرځي.
۵ـ ښوونکی دګروپو څارنه کوي او سوالونو ته یې ځواب وایي.
۶ـ په ګروپي کار کې باید شاګردانو ته داسې موضوع ورکړل شي چې د اجرا قدرت یې ولري.
۷ـ په نورو ګروپي کارونو کې باید شاګردان تغییر او تبدیل شي.
۸ـ په ګروپي کار کې معین وخت ورکول کیږي.
۹ـ دګروپي کار په پای کې باید نتیجه اعلان شي.

| گنه | دتدریس دا صولوحنی دولونه |
|---|---|
| ۱ | لکچر ( خطابه ) |
| ۲ | مناقشه اومذاکره |
| ۳ | سمعی اوبصری میتود |
| ۴ | قیاسی میتود (له کل څخه جزته ) |
| ۵ | استقرایی روش (دجزڅخه کل ته ) |
| ۶ | دنمایش اصول |
| ۷ | پله ایز (دسته جمعی میتود ) |
| ۸ | ځانګړی(انفرادی میتود ) |
| ۹ | دمسابقی اصول |
| ۱۰ | دنقش لوبول (رولپلی) |
| ۱۱ | علمی سیر |
| ۱۲ | تجربوی اولابراتواری کارونه |
| ۱۳ | دمشق اوتمرین میتود |
| ۱۴ | دتکرار روش |
| ۱۵ | دقصی اوحکایت روش |
| ۱۶ | دسوال اوجواب میتود |
| ۱۷ | گروپی روش |
| ۱۸ | عملی روش |
| ۱۹ | فکری مشوره |
| ۲۰ | دپرابلم حل ـ مایکروتیچنگ |

# پنځم فصل

## دټولګی ترتیب، تنظیم او د مشکلاتو حل

دا یو حقیقت دی که په یوه هیواد کی نظم، دسپلین او کنترول نه وی دهغه ملک عواقب خراب او له دربدری سره مخامخ کیږی او هم دهغه د پرمختګ مانع ګرځی، همدا راز که د دنیا په هر کار کی نظم موجود نه وی نتیجه ئی منفی وی.

که چیری په یوه مدرسه کی نظم موجود نه وی دهغی مدرسی دشاګر دانو په تربیت کی مثبت تغییر نه راځی او دشاګردانو تدریسی حالت منفی شکل ځانته غوره کوی ځکه هغه شاګردان چی سالم تربیه نشی د یوی اسلامی ټولنی لپاره ګټه رسولای نشی.

په همدی ترتیب که په یوه ټولګی کی بیوونکی نظم ونشی ساتلی نوهغه نشی کولای چی خپل پلان عملی او درس یی مثبته نتیجه ورکړی، نوهغه مطالب کوم چی په دی ارتباط مهم رول لری په لاندی دول تر څیړنی لاندی نیسو.

### الف : دټولګی ترتیب او تنظیم :

دټولګی ترتیب او تنظیم په تربیوی اړخ کی شامل مګر په تدریسی برخه کی نه دی شامل ځکه دټولګی ترتیب او تنظیم زده کوونکی دی ته آماده کوی ترڅو دوی ته تدریس وشی او په تدریسی عملیه کی

فعالوا ومنظمه‌ونووا خلنې څرنګه‌چې داکاروته‌په‌وروی، وروا وپرلــــه پسې توګه‌دشاګردانوعادت ګرځي، څوپه‌دې برخه‌کې لومړی ښوونکـــی پیرکارکوی اووروسته‌زده‌کوونکي په‌خپله‌دې کارته‌متوجه‌کیږی او د نظم اوترتیب رعایت کوی نوویلای شوچی دټولګی ترتیب او تنظیم د تدریس لپاره‌یوه‌زمینه‌سازی ده‌یعنی زده‌کوونکي اوښوونکي ټول د درس لپاره‌هڅوی اوآماده‌کوی ترڅوچی دتدریس عملیه‌په‌ښه‌اومناسب ډول جریان وموموی اوداکارښوونکی بایدپه‌ابتداد درس کی سرتـــه ورسوی یعنی دټولګی فضامخکی د درس له‌شروع څخه‌دتدریس لپــاره آماده‌کړی.

ترڅوچی تدریسی شرایط برابرشي نوښوونکی ته‌په‌کاردی چی یو لړداسی فعالیتونه‌سرته‌ورسوی چی دښوونی اوروزنی دمطالبـــو د انتقال امکانات برابرشي اودښوونی آوروزنی داهدافودلاسته‌راوړلو پروسه‌په‌کامیابی سره‌سرته‌ورسیږی.

نوپه‌دې اساس بایددښوونی اوروزنی دعلمی اوعملی پرنسیپو- نوا اصولوسره‌سم هغه‌مراحل کوم چی دټولګی په‌ترتیب اوتنظیم کی موءثردی قدم په‌قدم عملی شی چی هغه‌په‌لاندی ډول دی:

## لاندې ټکي باید دټولګې د ترتیب او تنظیم په برخه کې په‌نظرکې ونیسو

١- ښوونکی بایدټولګی ته‌ددا خلیدوپه‌وخت کی دسلام ورکولوآداب مراعات کړی.

٢- په‌ټولګی کی په‌وړین تندی اومناسب آوازخبری وکړی.

٣- ښوونکی دزده‌کوونکوپه‌مینځ کی بایدراوګرځی اوپه‌مناسب ځای کی له‌دریدووروسته‌له‌زده‌کوونکوسره‌روغبړوکړی.

٤- که‌چیری کوم زده‌کوونکی ناروغ یامعلول وی ورروسته‌ددی حالــت دپیداکولوڅخه‌ هغه‌ته‌دپاملرنه‌وکړی.

٥- ښوونکی ټولګی بایدمنظم کړی( دمیز، څوکی، درسی مواد، توره تخته‌ترتیبول) اودزده‌کوونکوکښینول (دقدپه‌لحاظ)

٦- دزده‌کوونکودنظافت لیدل اوپه‌مهربانه‌توګه‌هغوی ته‌توصیه‌کول.

- دزده‌کوونکوحاضری اخیستل دسوب اوناسوب دااهمیت په‌برخه کـــی هغوی ته‌مناسبه‌توصیه‌کول.

۸- دزده‌کوونکوکورنی وظیفه‌کتل او دهغوی نیم گړتیا وی اصلاح‌کول.
۹- دزده‌کوونکوتحریک د درس لپاره.

الف: دامکان په‌صورت کی غوره‌دا ده‌چی ښوونکی ددین، اخلاقو دیټولنی دآدابودکورنی دآدابوپه‌برخه‌کی خبری وکړی.

ب: زده‌کوونکوته‌وخت ورکول ترڅوهغوی دسترگولیدلی حال وواېی اویا یوبل گروپی فعالیت لکه‌ترانه، اسلامی شعار اجرا کړی.

ج: ښوونکی بایدوړځی مهم خبرا ویا تربیوی قصی شاگردانوته‌ وواېی.

ب: په‌ټولگی کی دمشکلاتوحل کول:

ځینی ښوونکی مسلکی پوهی اومهارتونوته‌اړتیالری اودوی به ټولگی کی له‌ځینومشکلاتوسره‌مخامخ کیږی غواړودغوښوونکوته‌دمرستی په‌منظوردټولگی دځینومشکلاتوپه‌حلولوبحث وکړو.

۱- په‌لومړی ټولگی کی مشکل:

یوشاگرددټولگی په‌آخرکی ناستدی خوب وړی اوخبری ښوونکی پوهیږی چی دغه‌شاگردله‌یوی غریبی کورنی څخه‌دی‌اودلری ځای څخه‌مدرسی ته‌راځی په‌دی حالت کی ښوونکی څنگه‌کولای شی د ټولگی نظم وساتی اودتوروزده‌کوونکودخندا مانع شی.

دپورتنی مشکل‌حل:

زده‌کوونکی له‌خپل ځای څخه‌راپورته‌کوواوپه‌ډیره‌مهربانی ورته واېوچی لاړشه‌خپل لاسونه‌اومخ پریمینځه‌وروسته‌یی په‌لومړی قطارکی کښینوواوهم په‌درسی فعالیتونوکی زیاته‌برخه‌ورکوو او هغوشاگردانوته‌چی خندل یی توصیه‌کووچی بیا ونه‌خاندی اوکه شاگرددا عمل بیا تکرارکړاوه‌دهغه‌له‌پلارسره‌تماس نیسوچی د دی علت پیدا اوچاره‌یی وشی.

۲- په‌دوهم ټولگی کی مشکل:

په‌ټولگی کی یوښوونکی په‌تدریس بوخت‌دی اویوهلک له‌بل هلک سره‌لاس اچوی اولوبی کوی، درس ته‌نه‌متوجه‌کیږی ښوونکی دغه‌حالت‌گوری څرنگه‌کولای شی دغه‌مشکل حل کړی؟

دپورتنی مشکل حل :

دغه شاگردان چې لوبې یې کولې دټولګي مخ ته را غواړو او له هغوڅخه دلاس اچولو دعلت پوښتنه کووکله چې علت معلوم شو په عادلانه ډول فیصله کوو او هغه شاگرد چې لومړی یې لاس اچولی دی په نرمه ژبه پوهوو چې بیا داکار ونکړي او بیا یې په لومړي قطار کې کښینوو او په درسی فعالیتونوکې زیاته برخه ورکووکه دا کار بیا تکرار شو دپلار سره یې تماس نیسو چې علت یې معلوم شي.

۳ـ دپنځم ټولګي مشکل :

ښوونکي غواړي چې دتعلیمي کال په سرکې یو صنفي امتحان واخلي ټولګی دومره تنګ دی چې دچوکیو او زده کوونکو دلري کولو امکان نشته او زده کوونکي یو له بل څخه نقل کوي ښوونکي څنګه کولای شي دغه مشکل حل کړي او امتحان هم واخلي؟

دپورتنی مشکل حل :

بایدښوونکي خپل سوالونه په دوه گروپونو یعنی الف او ب جوړ کړي او دهرگروپ سوالونه مختلف وي، خو سوالونه باید عادلانه وي چې د یوگروپ سخت او دبل آسانه نه وي او شاگردان په منظمو قطارونو کې کښینوي، او دقطار دهر زده کوونکي گروپ باید فرق ولري.

لومړی ښوونکي (الف) گروپ ته سوالونه وایي او بیا هغوته وایي چې خپلې پاڼې سرچپه کړي دي او بیا د(ب) گروپ ته سوالونه ووایي شي وروسته دحل کولو مرور کړي او که سوالونه جا پي وي نو دهرگروپ شاگرد ته خپل گروپ سوالونه ورکړي.

| زده کوونکی | |
|---|---|
| ب | الف |
| الف | ب |
| ب | الف |

| زده کوونکی | |
|---|---|
| ب | الف |
| الف | ب |
| ب | الف |

# شپږم فصل

## درسي مواد

**تعریف** : درسي مواد هغه شیان او وسایل دي چې د ښوونکوا و زده کوونکو سره د درس د هدف په لاسته راوړلو کي کومک کوي.

یا په بل عبارت هغه بصري او سمعي شیان چې ښوونکي او زده کوونکي د تدریس په وخت کي له هغو څخه کار اخلي د درسي موادو په نوم یادیږي.

مثلاً" یو سړی غواړي چې ۳۰ کیلومتر فاصله طی کړي که دا سړی په خپلو پښو ځي لږ تر لږه لس ساعته وخت په کار دی که چیري نوموړی سړی د وسایلو څخه کار واخلي نو په کم وخت کي به خپل هدف ته ورسیږي.

وسایل لکه بایسکل، موټر، او تیلفون په نظر کي نیسو که دا سړی د بایسکل په ذریعه نوموړی مسافه طی کړي په (۵) ساعت کي، که د موټر په واسطه یې طی کړي په یو نیم ساعت کي او که چیري د تیلفون له لاري خپل مشکلات حل کړي امکان لري چې په پنځو دقیقو کي خپل هدف ته ورسیږي.

همدا راز د علم د حاصلولو لپاره د انسان ټول حواس کار او فعالیت کوي خو په دې ټولو حواسو کي د انسان دوه حواسه ډیر مهم برخه لري لکه د سامعي، او باصري حس چې دا حواس د علم د حاصلولو وسایل دي.

له پورتنیو مثالو څخه دا څرگندیږي چې شیان او وسایل د انسانانو

داهدا فودپوره کیدومهم اسباب دی .

په همدی ترتیب دیوی موضوع په تدریس کی د درسی مواد و استعمالول هم دومره رول لری چی با یددیوی درسی موضوع د تدریس لپا ره ا رزا نه سا ده ا ومحیطی مواد تهیه ا وونها کل شی چی ددرسی موضوع په تدریس کی کومک وکړی .

مثلا" دا جتما عیا تو په مضمون کی کیدا ی شی چی دجزیری ، آ بنا ، خاکنا او دا سی نورو درسی موضوعا تو دتدریس لپا ره دا وبوا وخا وروڅخه استفا ده وشی ، همدا رنگه دریا ضی دمضمون دتدریس په وخت کی د کا ہو ، جوا رو ، لوبیا ، قلمونوا ودا سی نورشیا نوڅخه استفا ده وشی .

مونږا وتا سو دښوونکو په صفت گوروچی آیا یوه درسی موضوع به له موا دوسره په ښه ا ومو ، ثرږول تدریس شی او که بی له موادوڅخه ؟ وا ضح خبره ده کوم درس چی د درسی موا دو په ا ستعما ل سره سرته رسیدلی وی ډیر موء ثروی نظرهغه درس ته چی بی له درسی موا دوڅخه تدریس شوی وی حتی ځینی وخت تدریس پرته د درسی موا دو دا ستعما ل څخه سخت ا و مشکل وی .

څرنگه چی درسی موا دا ووسا یل په تدریس کی ډیر رول لری ښوونکی با یدکی دخپل درس د هدف دلاسته را ورلولپا ره دښوا ومو ، ثرو درسی موا دوڅخه په خپل تدریس کی کا روا خلی .

## ددرسي موادوانتخاب اوتهيه کول دښوونکو په لاندې مهارتو پوري اړه لري:

۱– دښوونکوا بتکا ر ۲– دښوونکومسلکی پوهه ۳– درسی موضوع
۴– محیطی شرا یط .

که ښوونکی وا قعاً دخپل مسلک سره علاقه ولری هغه تل هلی ځلی کوی چی ښه درسی موا دا و وسا یل پیدا کړی او په تدریس کی ا ستفا ده ورڅخه وکړی ، یوا ځی د درسی موا دوا ووسا یلوپیدا کول دښوونکولپا ره کافی نه دی بلکه له هغوڅخه په خپل تدریس کی کا را خیستل مهم دی .

## ددرسي موادوتهيه کول :

۱– اصلی درسی موا د ۲– مودلونه ۳– تصویرونه

فرضاً درسی موضوع دبیولوژی په مضمون کی سترگه ده که چیرته د قصاب څخه دغوا یی ، پسه یا نوروذبح شوو حیوا نا تو سترگه را وړوا وشاگردانو

ته د دی سترګی په بارهکی خپل درس عملا" توضیح کړودا سترګه ا صلی درسی مواد دی، او که چیری یوه پلاستیکی سترګه پیدا کړوا وشا ګردا نوته درس ورکړودا سترګه مودل دی، او که چیری په کاغذیا تخته دسترګی شکل رسم شی او درس واضح کړودی سترګی ته تصویر ویل کیږی یا مثلا" پا ڼه ټولګی ته را وړل اصلی مواد، دپا ڼی جوړښت له کاغذخه دهغی مودل او همدا رنګه دپا ڼی رسم په یوه کاغذکی دپا ڼی تصویر دی.

**مودل:** په لغت کی نمونی ته وا یی او په اصطلاح کی دیوه اصلی شــــی مصنوعی او جوړشوی جسم ته ویل کیږی.

## درسي موادمؤثریت په لحاظ په دوه ډوله دی:

۱ــ هغه درسی مواد چی دیوی درسی موضوع لپاره تهیه شوی وی او فعلا " له هغوڅخه په خپل تدریس کی کار اخلو لکه چارتونه ــ کا رتونه .... اونور.

۲ــ هغه درسی مواد چی پخوا تهیه شوی وی او درسی موضوع پوری اړه نه لری او دصنف دزینت او ښایست لپاره په دیوا روکی نصب شوی وی ترڅو شاګردان دهغوله لیدوڅخه ځینی شیان (موضوعات) زده کوی لکه چارــ تونه تصویرونه، نقشی او داسی .... نوردرسی مواد.

د دی لپاره چی تدریس ښه موءثریت پیدا کړی نولاندی ټکــی د درسی موادو په تهیه کولوکی په پام کی نیسو.

۱ــ دا سی درسی موادبا یدانتخاب او تهیه شی چی دزده کوونکو مشکلات حل او موافق دهغودا ستعدا دونوا وعلایقوسره وی.

۲ــ درسی موادبا یدداسی انتخاب او تهیه شی چی زده کوونکی دتدریس په وخت کی له هغوڅخه ښه استفا ده وکړلای شی.

۳ــ درسی موادبا یدداسی وی چی واضح، روښانه او زده کوونکی له هغوسره مخکښی (قبلی) آ شنا ئی ولری.

۴ــ درسی موادبا یدداسی تهیه شی چی ساده، محیطی اودهغوجوړول او تهیه کول ګران نه وی.

۵ــ درسی موا دبا سی انتخاب او تهیه شی چی په ټولګی کی دلیدلو او لوستلووړوی.

۶ــ دا سی درسی موا دا نتخاب او تهیه شی چی کوم علمی حقایق زده کوونکی دهغو په واسطه په ټولګی کی استفا ده کوی په خپل فردی او اجتما عی ژوندکی هم له هغوڅخه ګټه وا خلی.

# د درسي موادو دولونه د استهلاک له مخې:

درسي مواد د استهلاک له نظره په دوه ډوله دي ۱ـ استهلاکي ۲ـ غیر استهلاکي .

۱ـ استهلاکي : لکه تباشیر ، کاغذ ، رنگ سپینه خاوره او داسې نور .

۲ـ غیر استهلاکي: لکه تخته ، تخته پاک چارت ، نقشه فلش چارت، کارت، فلش کارت . تصویرونه ، مودلونه ، گرافونه ، پوسترونه ، سلایدونه ، فلمونه ، پروجکتور او داسې نورچې د اکثره د تعلیم او تربیې د مسئو-لینو له خوا مدارسو ته تهیه او ترتیب کیږي، بعضې درسي مواد لکه چارت فلش چارت ، کارت ، او فلش کارت چې اکثره د استادانو له خوا تهیه کیږي د دې ځینو درسي موادو تعریفونه په لاندې توگه کولای شو :

۱ـ **چارت:** هغه بصري مواد دي چې درسي موضوع په شکل د الفاظو ، جملاتو او کلمو واضح کوي.

۲ـ **فلش چارت:** هغه بصري مواد دي چې یوه درسي موضوع په شکل د تصویر روښانه کوي .

۳ـ **کارت :** هغه بصري او درسي مواد دي چې د درسي موضوع یو جز د کلمې یا لفظ په شکل واضح کړي.

۴ـ **فلش کارت :** هغه درسي او بصري مواد دي چې د درسي موضوع یو جزء په شکل د تصویر روښانه کړي.

# هغه اساسي ټکي چې د درسي موادو د استفادې په وخت کې باید په نظر کې ونیول شي

۱ـ یوا ځې هغه داړتیا وړ مواد او لوازم چې د ښوونکو یا زده کوونکو یو گروپ هغه ترا ستفادې لاندې نیسي ټولگي ته راوړل شي، د غه مواد باید د زده کوونکو علاقه ځانته جلب کړي.

یعنې درسي مواد دا رنگه وي چې زده کوونکو سره د زده کړې په مسئلو کې کومک وکړي درسي مواد د هغه وخت موء ثرتما میږي چې د یوه درس او مطلب په واضح کولو کښې او هم مفهومونه چې ښوونکي او شا-گردان د هغو په لټه کې وي د هغو په لاس ته راوړلو کې کومک وکړي.

۲ـ درسي مواد د مختلفو مقصدو لپاره په مختلفو طریقو استعمال کیدای شي، درسي مواد په درس کې د زده کوونکو د بحث او مناقشې لپاره په

پەدی مبارک آیت کی فرمائی:

" فمن یعمل مثقال ذرەخیرا یرەومن یعمل مثقال ذرە شرا یرەه " پارە ۳۰ سورەالزلزال آیە ۸

ترجمه: پس هرچا چی و کړەپەمقدار ذری نیکی وبەوینی هغه (نیکی بەووینی).

اوهرچا چی وکړەپەمقدار ذری بدی وبەوینی هغه (بدی بەوینی).

دپورتنیوویناء و حخه داسی څرگندیږی چی راتلونکی نسل د اسلام پەرڼاکی داسی

تربیەشی چی داسلام دمقدس دین دارزښتونوپەنظرکی نیولوسره دعصراوزمان دغوښتنوسرەسم دهغوی سعادت داسلام پەرڼاکی وغوښتل شی.

دماشوم شخصیت تەاحترام یوداسلامی تربیت داصولو څخه دی داکاردماشوم " طفل " پەپرورش " روزنه " کی ډیرەاغیزه لری.

ددی لپارەچی علوم اطفالو" کوچنیانو" تەسەانتقال ومومی بایدیومربی اومعلم دتربیت لەفن" Pedagogy " پیداگوژی سره کاملەآشنائی ولری ترڅوخپل معلومات دطفل " ماشوم" لەسوئی سره مطابق، اودهغوپەذهن کی ځای ورکړی.

دپیداگوژی معنی دطفل لارښووتەدەیعنی دکوچنی " ماشوم "ـ لیږل مدرسی تەاودهغەرهنمائی کول.

کوم ښوونکی چی دتربیت پەفن یا پیداگوژی ښەپوەوی خپل معلومات پەښەتوگەشاگردانوتەانتقال کولای شی، نولازمه ده چی د ښەښوونکی مشخصات ، صفات اومسئولیتونه مطالعه شی.

کارول کیږی اودزده کوونکو دتوجه او علاقی سبب ګرځی او هغوی د زیاتی مطالعی لپاره تشویقوی .

۳- وروسته له هغه چی دمواد وځخه مواستفاده وکړه باید په ډیر احتیاط سره وسائل شی تر څو په راتلونکی کی ګټه ځنی وشی.

لکه څرنګه چی مخکی موو ویل دعلم په حاصلولو کی دانسان ټول حواس کارکوی او حواس د ذهن دروازی دی نود دی حواسو دفعاله کولو لپاره که هرڅومره موء ثرا و ګټورد رسی مواد او وسایل دشاګردانو د ښی زده کړی لپاره آماده شی، په هم هغه اندازه د زده کوونکو زده کړه ډیر ژر صورت نیسی او تر ډیره وخته پوری د درسی مواد و په واسطه د زده کوونکو حاصل شوی معلومات دوام دار او پایدار وی.

د دی لپاره چی پوښوونکی دشاګردانو د زده کړی لپاره درسی مواد تهیه کوی که هغه سمعی مواد وی که بصری خو ښه به دا وی چی دا درسی مواد عملا" دشاګردانو په دسترس کی واقع شی او هغوی خپله زده کړه د دی مواد و په ذریعه حاصل کړی لکه یو متل دی چی وائی :

۱- اوریدل هیریدل دی.

۲- لیدل زده کول دی.

۳- کول پوهیدل دی .

# اووم فصل

ویسئلونک عن الروح ۰ قل الروح من امرربی ۰ و ما اوتیتم من العلم الا قلیلا ۰

## روانشناسی (دسلوک پیژندنه)

## (Psychology)

دا علم دروحیاتو- علم النفس او دکردا رپیژندنی په نوم هم یا دیږی، کلمه چی سایکولوژی یا روانشناسی‌ئ‌یه دا جالب عنوان تحت اللفظی معنی کړونودهغه معنی روح پیژندنه ده او ددی علم عربی اصطلاحات علم النفس او روحیات دی کلمه چی د دی اصطلاح لاتینی کلمی ته مراجعه وکړو او سایکالوژی (Psychology) اصطلاح معنی کړونودلته دی چی سایکو دروح یا روان او لوژی دعلم په معنی او له دوارو کلمو څخه علم الروح مینځ ته راځی، اما دا عنوانونه ددی علم واقعی او اصلی مفهوم چی انسان دمطلوب عکس العمل لپاره دمحیط په مقابل کی ښه‌آماده کوی څکه چی دا صطلاحات او عناوین فلسفی جنبه لری.

لمړی عالم چی دا علم یی له فلسفی څخه جلا کړویلم ولت المانی وه چی په (۱۸) پیړی کی یی روانشناسی ترتجربی لاندی راوسته او هغی ته یی دعلم رنگ ورکړ.

او س روانشناسي د روح علم نه دی جان ديوی او دهغه پيروان روانشناسي د بشر د کردار د علم په نوم يادوی چې داد دی علم يووا قعی تعريف دی او کردار يو لړ اقدامات او وفعاليتونه هدف ته درسيدو لپاره دی، او يا په بل عبارت معنی دار او هدف لرونکو فعاليتونه کردار وايی دمعاصرو علماوو څخه يولوی عالم چې دوکتور (شوايگر) نوميده وويل چې راځی دا نسوم او اصطلاح لکه روانشناسی، روحيات د روح علم او حتی علم النفس ترک کړو او دهغو پر ځای د کردار يا د سلوک د علم نوم پکاريوسو.

**تعريف:** روانشناسي هغه علم دی چې د ژوندي موجوداتو د کړو وړو او د هغوی د علتونو د کشف او د دوی رابطه له محيط سره تربحث او څيړنې لاندی نيسي، روحيات ډيری شعبی لری خو موږ دلته د خپل مسلک په ارتباط د روانشناسي هغه برخه او شعبه تر څيړنې او غور لاندې نيسو کومه چې د تربيتی روانشناسي په نوم سره يادېږی.

**تربيتي روان شناسي:** دا هغه علم دی چې د انسان، رفتار او کردار او د دی کردار او رفتار د علتونو او دهغه ارتباط له محيط سره مطالعه کوی.

دزده کوونکو حالات تر څيړنې لاندی نيسي، د زده کړی او روزنې مختلف روشونه او دهغو لاسته راوړل مطالعه کوی او له طفل (ماشوم) او زده کوونکي سره کمک کوی تر څو په ښه او ډېر ډېر زړه له هغې جامعی سره چې ژوند پکی کوی سازګاروواوسی.

د تربيتی روانشناسی د بحث وړ مسايل او موضوعات ډير زيات دی خو دلته څو ضروری شيان کوم چې په لومړی قدم کې د ښوونکو لپاره ضروری دي په لاندی ډول سره تربحث لاندی نيسو.

۱- **شاګردانو پېژندنه**: د دی لپاره چې يو ښوونکي وکولای شي د شاګردانو سره د دوی د ضرورتونو، غوښتنو او علايقو موافق مرسته وکړی او په خپل کار (ښوونه او روزنه) کې بريالی وی او دهر شاګرد لپاره دده کار ګټور او مثبت بدلون راوستونکي وی نو لازمه دا ده چې خپل هر شاګرد د لاندنيو اړخونو څخه ښه وپيژني.

دژوندو ضع - اجتماعی وضع - اقتصادی وضع صحی حالت - فرهنګی وضع، هيجانی وضع، عواطف او نور روانی حالتونه.

کله چې يوا ستادنوی صنف ته ورځی دی بايد کم له کمه په يا م کې ولري چې زه بايد د زده کوونکي لاندی شيان ځانته معلوم او زده کړم.

دزده‌کونکوعمر، دشاگردا نوولی، دولی دنده، دشاگردا قتصادی وضع "ا علی متوسط، ادنی" داوسیدوځای " ښار، کلی، قریه، ځانته کور " څومره علمی معلومات لری، کوم شیان یی زده‌دی، چیرته‌یی درس لوستلی " کور، مسجد، مدرسه" دشاگردصحت، دزده‌کوونکـــو د ملگروپیژندنه ـ له‌چا ئی درس لوستلی " دینی عالم، ښوونکی، مورا وپلار" څه ډول همسایگان لری؟ اوڅوک دی؟ په‌څه‌قسم کورکی ژوندکوی؟ ( صحی؟ غیرصحی؟ کرائی، شخصی؟) دکورلری والی یی‌له مدرسی څخه‌جرئت، عواطف، احساسات، ټولنیزکړه‌او وړه، اخلاق اونور.

نوټ: کله‌چی نوی شاگردان مدرسی ته‌راځی دهغوی ډیرشیان خصوصاً " په‌ژبه ـ دینی مسائلواوریاضی کی زده‌وی نوښوونکوته لازمه‌ده‌چی په‌هغوځان ښه‌پوه‌کړی ترڅودوی ځانته‌دا معلومه‌کړی چی زما شاگردان څومره‌قبلی آمادگی لری.

۲ـ دلوی والی اوماشوم توب دوره‌اوپه‌زده‌کړه‌کی دهغوی اختلافات ( توپیرونه ) لکه‌څرنگه‌چی ماشوم توب اولوی والی‌دخصوصیاتو په لحاظ ډیرتوپیرونه‌لری نودزده‌کړی په‌لحاظ هم ماشومان اولویان توپیرلری چی په‌لاندی ډول بیانیږی.

| لویان | اطفال(ماشومان) |
|---|---|
| ۱ـ لویان کوم شیان چی غواړی هغه‌زده‌کړی بایدکومک ورسره‌وشی. | ۱ـ ماشومان کوم شیان چی ورته ضرورت لری هغه‌بایدزده‌کړی. |
| ۲ـ لویان برسیره‌پردی چی له ښوونکی څخه‌زده‌کړه‌کوی، یوله‌بل څخه‌زده‌کړه‌کوی. | ۲ـ ماشومان راساً له‌ښوونکی څخه دزده‌کړی اخذکوی. |
| ۳ـ لویان دماشومانوپه‌نسبت مستقل وی. | ۳ـ ماشومان په‌نوروپوری تړلی وی. |
| ۴ـ لویان په‌خپله‌تصمیم‌نیسی چه‌څه ووایی اوڅه‌زده‌کړی. | ۴ـ ښوونکی تصمیم نیسی چی زده کوونکی څه‌ووایی اوڅه‌زده‌کړی. |
| ۵ـ لویانوته‌دمشکل حل زده‌کړی مرکز دی. | ۵ـ ماشومانوته‌مضمون دزده‌کړی مرکزدی. |
| ۶ـ لویان داوس وخت لپاره‌زده‌کړه‌کوی | ۶ـ ماشومان دراتلونکی وخت لپاره‌زده‌کړه‌کوی. |

## ۳- رشد (وده)

**تعریف:** رشد عبارت له یوه منظم تغییراتي جریان څخه دی چې پر له پسې شکل په یوه شخص کې منځ ته راځي، او دغه تغییرات د فزیولوژي "علم الوظایف" له نظره یوه شخص ته هره حیثه ددې توان او قدرت ور-بښي تر څو له نوي محیط، وضعي، او حالت سره سازښت وکړي.

**د رشد خاصیتونه:** رشد څلور لاندې خاصیتونه لري :

۱- رشد یو پر له پسې او پیوسته جریان دی یعنې د ماشوم حال له ماضي او دغه راتلونکي ته ارتباط ورکوي (طفل چه څه شی مخکې زده کړي د اوس لپاره، او کوم شی چې اوس زده کوي د راتلونکي (آینده) لپاره ډېر مهم او موثر دی.

۲- رشد تدریجي تغییر په ډول د فرد په کړو وړو کې ښکاره کیږي لاکن مور، پلار، او ښوونکي څرنګه چې همیشه له دوی سره وي د تغییراتو ته لږ شانته متوجه وي نظر هغو کسانو ته چې له ماشومانو څخه لري وي ځکه هغه څوک چې ماشومان تل ویني په دې هکله لږ دقت کوي نظر هغو کسانو ته چې په ځنډ لیدنه ور سره کوي.

۳- رشد د انسان په مختلفو برخو کې لکه " عقلي، اجتماعي، عاطفي، اخلاقي، دیني، هنري " صورت نیسي نو دلته پلرونه او ښوونکي وظیفه لري تر څو د شاګردانو ټول اړخونه په نظر کې ونیسي او دوی مثبت لور ته رهنمایي کړي.

۴- د رشد جریان په شاګردانو کې توپیر لري ځیني ژر ژر او بعضي ورو ورو رشد کوي، ځیني په یو برخه او بعضي په بله برخه کې ښه او ژر رشد کوي چې علت ددې توپیرونه، روغتیا، غذا، محیط وراثت تشکیلوي چې په دې کې د محیط اجتماعي او فرهنګي وضع مهم رول لري.

**رشد او فردي اختلافات:** د ماشوم د ژوند لومړني کلونه د شخصیت په تشکیل کې د راتلونکي لپاره یو مهم اساس تشکیلوي یعنې دغه دوره د ماشوم د راتلونکي د کامیابۍ او ناکامۍ سرمایه ګڼل کیږي ځکه نو دغه دوره ډېره د دقت او توجه وړ ده.

څرنګه چې رشد یوه معینه طرحه ده چې ټول هغه ته رسیږي مګر توپیرونه یې په وخت کې دي چې ځیني هغه ژر تعقیبوي او بعضي په ځنډ سره چې ددې عوامل - کورني - محیط او اجتماع دي.

خو له نیکه مرغه انسان یو انعطاف پذیره او تغییر منونکی مخلوق

دی چی دمور، پلار، ملاصاحب ښوونکی اوملګروپه‌پاملرنه‌سره‌هغه ښه
کنترول اواصلاح کیدلای شی چی په‌دی کی محیط وراثت او اجتماع دیر
ګټورثابتیدلای شی پس موږکولای شوهغه‌په‌دری برخوو ویشو!

۱- دافرادورشدیوه‌معینه‌طرحه‌تعقیبوی مګراختلاف یی په‌سرعت او
ګړندیتوب کی دی. لاکن طبیعی جریان یی یوشان دی، یعنی رشد د
ټولوله‌سرڅخه‌شروع اوپه‌پښوختم کیږی.

۲- دشاګردروزنه‌په‌لمړنیوکلونودژوندکی په‌اشردارتباط اوبرخورد
دده‌له‌مور، پلار، ښوونکوفرهنګی زده‌کړی اواجتماعی زوه کړی
پوری اړه‌لری چی دده‌دآینده‌ژونددرفتاراوکردار اساس او بنیاد
تشکیلوی .

۳- په‌رفتاردانسانانوکی هم مشابه‌طرحی وجودلری مثلاً" په‌حرکت ،
لیکلو، رسم کولو، نقاشی، کار- خندا، ژړا، خفګان، خوشحالی ،
خبری کول، محبت، نفرت ..... اونورچی په‌خلکوکی لیدل کیږی.

۴ـ دتربیت (روزنی) مرحلی داسلام لەنظرە : داسلام دمبین دین لەنظرەدعمرپەاساس د تربیت مرحلی پەلاندی ډول بشودل شوی دی :

دانسان د روزنی مرحلی داسلام لەنظرە

اوله مرحله (دزیږودنی څخه یو ځیشت کلنی پوری

دوهمه مرحله
دیویشت کلنی څخه دژوندتر پای

اول ۷ کاله

ماشوم دمورا وپلاربا دار سردارا وآغا دی، دلته مورا وپلارمجبوردی، چه ددوی غوښتنی پەصمیمانه ډول ترسرەا وپەډیرملایمت ورسرەرفتاروکړی.

دوم ۷ کاله

دلتەنوطفل دخدمتگار پەډول دمورا وپلارا وامرپر ځای کوی، اودی پەهیڅ مخالفت نەکوی.

دریم ۷ کاله

دلتەنەباداره دەنەنوکر بلکەدخپل کورنی یومشاـ ورځان گڼی دعقلی او احساساتولەنظرەتقریبا داستقلال پەمرحلەکی واقع دی.



۵ـ د زده کړې څلور اساسي اصلونه :

لکه څرنګه چې موږ د روانشناسي له نظره یوه سلسله مهم مسائل وڅېړل نو ښه به دا وي چې د زده کړې اساسي اصلونه هم یوه لنډه اشاره وشي :

| ۱ | ۲ | ۳ | ۴ |
| --- | --- | --- | --- |
| ولې شاګردانو ته درس ورکوو؟ د علم زده کړه پر مونږ – فرض ده او په اسلام کې ستر مقام لري. يُؤتي الحكمة من يشاء ومن يوت الحكمة فقد اوتي خيراً كثيرا ه. خدای (ج) علم او پوهه ورکوي هغه چا ته چې وغواړي او چا ته چې علم ورکړ شو په تحقیق هغو ته ډېر خیر ورکړ شو. رسول (ص) د قبا مسجد ته راغی لیده یې چې اصحاب دوه ډلې ناست وه یوه د علم حلقه او بله د ذکر وه مبارک د علم په حلقه کې کېیناست. اِنّما بعثت معلماً ه. په تحقیق سره زه معلم رالیږل شوی یم. | څرنګه درس ورکوو؟ په تدریس کې مهرباني شفقت، نرمه لهجه ډېره ګټوره او موثره ده. لیّنوا لمن تُعلّمون و لمن تتعلمون منه. نرم اوسی له هغه چا سره چې درس وایی او له هغه چا سره چې تاسی ورڅخه تعلیم کوی. | څه شی درس ورکوو؟ هغه شیان د دې ورکول شي چې شاګردان د الله (ج) په وحدانیت او د حضرت محمد (ص) په رسالت او د انبیا (ع) په رسالت، د اسلام د دین په اساساتو او د اسلام په شرعی اوامرو او نواهیو پوه شي. هم د ځان او هم د ټولنې لپاره د خدمت ښه مصدر وګرځي. | څه وخت درس ورکوو؟ اول د درس لپاره زمینه برابره شي شاګردان روانی او جسمی له نظره آماده شي، مشکلات او موانع د تدریس لرې کړی شي، شاګردان د درس ته آماده شي. |

# اتم فصل

## واذا حکمتم بین الناس ان تحکموا بالعدل

## امتحان او ارزيابي

الف ـ امتحان :

تعریف : امتحان په لغت کی آزمایش ، سنجش ، یا دیوه شی د څه والی اوبدوالی معلوملو ته وایی .

په اصطلاح کی یومنظم اوکنترول شوی عمل دهجی دتعلیم او تربیی داهدافو دتطبیق په منظوردا فرادودتربیوی پیشرفتو نو دمعلوملو استعمالیږی.

یاپه بل عبارت دشاگردانودپوهی آزمایش اومعلومول دمعلم یا ممتحن پواسطه دامتحان څخه عبارت ده . امتحان دکال په اوږدو کی دوه یادری واری دمعلم پهواسطه یادمدرسی داداری ، یا د تعلیم اوتربیی دلوړمقام ترڅارنی لاندی په رسمی توگه سرته رسیږی . .

### دامتحان هدفونه

ولی امتحان اخلو :

دامتحان اخیستلو پهواسطه لاندی ټکی ښه معلومیدلای شی .

۱ـ آیا تدریس مثبت وه که نه ؟

۲ـ آیا په تدریس کی وروسته له امتحان څخه تبدیل راشی که نه ؟

(دتدریس وضع ښه‌کول)
۳- دمعلم او شاگرددروا ړوا رزیابی.
۴- دبا استعداده‌شاگردانو معلومول.
۵- دهغو شاگردانو معلومول چی خاص کمک ته‌ضرورت لری.
۶- دشاگردانو تشویق او ترغیب.
۷- امتحان دزده‌کړی دعملیی په‌حیث کمک کوی.
۸- دشاگردانو انتخاب دلوړوا و مسلکی تحصیلاتولپاره.
۹- له‌یوه‌ټولگی څخه‌بل ټولگی ته‌دشاگردانو ارتقا کول.
۱۰- دفردی اختلافاتو معلومول.

## ب: ارزیابی:

**تعریف:** ارزیابی دهغولیاروا وچاروڅخه‌عبارت ده‌چی دافرادو دکاراوفعالیت دپرمختگ اوپیشرفت دمعلومولولپاره‌استعمالیږی.

ارزیابی هم دآموزشی دعملیی څخه‌شمیرل کیږی چی دتعلیمی کال په‌اوږدوکی دمعلم له‌خوا څوواره‌بی له‌کومی پخوانی خبرتیا او بی له‌تعیین کیدودوخت څخه‌په‌خصوصی توگه‌هروخت یی چی زړه‌وغواړی سرته‌رسیږی.

ارزیابی په‌دوامداره‌توگه‌دتعلیمی کال په‌جریان کی ترسره کیږی اوکومه‌رسمی جنبه‌نلری. دارزیابی په‌واسطه‌معلمین کولای شی دشاگردانودهردول خصوصیاتو څخه‌خبرشی، چی دهمدی خصوصیاتو په اساس شاگردان په‌گروپونوویشلی شی.

دارزیابی دنتایجوپه‌اساس کولای شوچی یومناسب تربیتی پروگرام چی دشاگردانوجسمی رشداوذهنی انکشاف سره‌موافق وی‌ترتیب کړو.

### دارزیابی هدفونه

ارزیابی دوه‌عمده‌هدفونه‌لری:
الف: ښوونکی سره‌کمک کوی چی وپوهیږی تربیوی اهداف څومره‌ترسره‌شوی دی.
ب: ښوونکی سره‌دشاگردانو په‌پیژندلوکی کمک کوی.
دپورتنیواهدافو څخه‌لومړی هدف دتربیی ارزیابی اصلی او اساسی هدف دی.
که‌چیری دارزیابی څخه‌هدف دزده‌کړی لپاره‌دیوی ښی فضابرا-

# دښه ښوونکي مشخصات، صفات اومسئولیتونه

داسلام دمقدس دین له نظره عالم او معلم ډیرلوړمقام لري لکه څرنګه چې حضرت رسول اکرم (ص) فرمایلي دي:

۱ـ (فضل العالم علی العابدکفضلي علی ادناکم) الحدیث

ترجمه: "دعالم فضیلت په عابدباندې دومره ډیردی لکه زما فضیلت پرادنا دتاسي "

۲ـ انما بعثت معلما " الحدیث

ترجمه: (په تحقیق سره زه معلم رالیږل شوی یم)

نوڅرنګه چې ښوونکی دیرلورمقام لري نوددې لوړمقام خښتن بایدیوسلسله مشخصات، صفتونه او مسئولیتونه ولري ځکه که دښوونکي مشخصات تعیین نشي نودشخصیت ښه نمونه دزده کوونکولپاره ښوونکی دی اوزده کوونکي هڅه کوي ترڅوپرخپل ځان کي دښوونکي خصوصیات پیدا کړي، نواوس مونږدښوونکي دمشخصاتو، صفاتواومسئولیتونوپه هکله څه ناڅه څیړنه کوو.

الف: د درس څخه بهردیوښه ښوونکي مشخصات:

۱ـ داسلام اوتقوی له نظره:

ـ مسلمان، تقوی داراومتدین وي.
ـ حمیده اخلاق ولري.
ـ حلیم، برده بار اوحوصلي خاوندوي.
ـ رښتوني، عادل اوثابت قدم وي.
ـ کبراوغرورونلري.
ـ حرکات، سکنات اوجامي یي له اسلامي جامعي سره موافق اوبرابروي.

۲ـ په خپله ټولنه کي باید محبوبیت ولري.

۳ـ دخپل اجتماعي ماحول څخه باخبره وي. (چاپیریال)

۴ـ له ورځنیومسائلو (اخبار، جراید، رادیو،....) څخه باخبره وي.

برول وی نوبا یدا لاندې نتائج په نظرکې ونیسو .
۱ـ دمناسبې انګیزې تولیدول دزده کړې لپاره .
۲ـ دا صلاح لپاره دشاګردانو دقوي او ضعیفو نکتو پیداکول.
۳ـ دشاګردانو ګروپ بندی د دوی دسویې علایقو او استعدادونو په لحاظ
۴ـ په هغو نکاتو او حقائقو تاکیدکول کوم چې مهم وي.
۵ـ دشاګردانو تشویق کول دخصوصي او عمومي اهدافو دلاسته راوړلو لپاره
۶ـ دشاګردانو دپیشرفت او پرمختګ درجه تعینول.
۷ـ په درسي پروګرامونو کې اصلاح راوستل.
۸ـ دښه اصول تدریس رهنمايي کول.
دارزیابي ددوهم هدف په لحاظ بایدلاندې ټکي په نظرکې ونیسو.
۱ـ دشاګردانو ارتقاء له یوه تولګي څخه بل تولګي ته .
۲ـ دیوګروپ شاګردانو مقایسه دبل ګروپ دشاګردانو سره .
۳ـ دیوه شاګردمقایسه کول دګروپ دا عضاو سره .
۴ـ دفردي اختلافاتو معلومول .
۵ـ دشاګردانو دپیشرفت معلومول په ګروپ کې.
ارزیابي دتدریس او زده کړې دمهمو اجزاوو څخه ده څرنګه چې تدریس او زده کړه دګهوارې څخه ترقبره پورې وي اودوامداره عمل ده نو ارزیابي هم متداوم اودوامداره عملیه ده . دامتحان او ارزیابي دواړه مفهوم یوله بل سره ډیرنږدې دي نوځکه یې اهداف هم یوله بل سره په څینو برخوورته دي.

## دامتحان او ارزیابي ترمنځ توپیرونه

دامتحان او ارزیابي ترمنځ فرقونه په لاندې ډول دي :

| ارزیابي | امتحان |
|---|---|
| ۱ـ ارزیابي یوغیررسمي عمل ده . | ۱ـ امتحان یورسمي عمل ده |
| ۲ـ ارزیابي هروخت بدون له کوم اعلان څخه ترسره کیږي. | ۲ـ امتحان په کال دوه یا دري واري دمخکې خبرتیا په اساس اخیستل کیږي . |
| ۳ـ ارزیابي یوه دوامداره عملیه ده | ۳ـ امتحان یوغیرمتداوم عمل دي. |
| ۴ـ ارزیابي ډارا وویره نلري. | ۴ـ په امتحان کې ویره او خوف ډیر |

وی . ۵ـ ارزیابی درجه‌بندی لری مگر
۵ـ امتحان درجه‌بندی او نمری نمری نه‌لری.
دوا ړه‌لری. ۶ـ ارزیابی کامیابی اوناکامی
۶ـ امتحان کامیابی او ناکامی نه‌لری.
دوا ړه‌لری.

## په‌یوه امتحان کی دالاندی ټکی بایدپه‌نظرکی ونیول شی :

۱ـ امتحان بایدمعین هدف ولری.
۲ـ امتحان بایدتدریس شوی پروگرام مطابق تهیه اوواخیستل شی.
۳ـ سوالونه‌دتدریس شوی پروگرام ټول ځا ی ونیسی.
۴ـ پوستنی بایدیومعین حداومعیار ولری.
۵ـ دامتحان وخت هم بایدتعیین شی(دهرشاگرددامتحان وخت)
۶ـ په‌امتحان کی بایدنمرویومعین معیار اوستندردموجودوی.
۷ـ بایدسوالونوکلیدموجوده‌وی.
۸ـ دشاگردانودتعدادپه‌اساس بایدټول امتحان وخت تعیین شی.
۹ـ په‌امتحان کی بایدعدالت څخه‌کاروا خیستل شی، چی عدالت د
اسلام دمقدس دین له‌غوستنوڅخه‌دی.

## دامتحان دولونه

که‌چیری امتحان دسوالونودانوا عوله‌نظره‌دسته‌بندی کړوپه‌دی صورت کی امتحان په‌لاندی برخواودولونوویشل کیدای شی.



الف ـ **مقالوي امتحان**: په‌دی امتحان کی شاگردان په‌خپل قلمی روش دسوالونوځوابونه‌تهیه‌کوی اولیکی دغه ډول امتحان دشاگردانودلیاقت دمعلومولواولازمه‌موادود تنظیم لپاره‌ښه‌ګټوردی اوپه‌دی دوه‌ډوله‌دی، تحریری امتحان او تقریری امتحان .

الف ـ تحریری امتحان : بیاپه‌دریوبرخوویشل شوی دی،اوږد مقالوی، لنډمقالوی، ډیرلنډمقالوی امتحان .

۱ـ اوږدمقالوی امتحان : په‌دی ډول امتحان کی نظر نوروډولوته‌دسوالونوځوابونه‌نامحدودپه‌نتیجه کی دځواب کنترول ډیرګران دی، مثلا دزکات په باره کی خپل مفصل معلومات ولیکی ؟

۲ـ لنډمقالوی امتحان: په‌دی ډول امتحان کی دسوالونوځوابونه‌محدودوی لکه‌دااوږدمقالوی امتحان دوه‌فایده‌اودوه‌نقصونه‌ولیکی ؟

۳ـ ډیرلنډمقالوی امتحان: په‌دی ډول امتحان کی د سوالونوځوابونه‌ډیرلنډوی لکه‌دافغانستان د دریو مهمودریابونونومونه‌واخلی؟

ب ـ تقریری امتحان: عبارت له‌هغه‌امتحان څخه‌دی چی ښوونکی له‌شاگردانوڅخه‌په‌شفاهی ډول پوښتنی کوی اوشاگردان په‌شفاهی ډول ځواب وایی.

ب ـ عینی یاانتخابی امتحان: په‌دی ډول امتحان کی ځواب په خوا تعیین شوی وی شاگردان یاحل کوونکی ترټولوصحیح ځواب دځوابونوڅخه‌انتخابوی په‌دی ډول امتحان کی ځواب په‌مختلفوډولوورکول کیږی، اوشاگردخپل وخت په‌فکرکولواولوستلوتیروی، ددی امتحان کیفیت دامتحان دترتیب کوونکی دمهارت په‌واسطه‌تاکل کیږی.

دآفاقی یاعینی امتحان دولونه :- آفاقی امتحان په‌څلورډول دی چی هریویی ترمطالعی لاندی نیسو.

۱ـ صحیح اوغلط امتحان: په‌دی امتحان کی داسی سوالونه مطرح کیږی چی له‌دووحالتوصحیح اوغلط څخه‌خالی نه‌وی، چی په‌ ... نه‌یا(+)او(ـ)سره‌بیانیږی اوهغه‌وخت استعمالیږی چی هدف ... شاگردانوداستعدادمعلومول وی.

مثلاً" لاندی سوالونه‌په‌څیرسره‌ولولی کوم‌سوال چی غلط وی مخ

ته‌یی د (غ) توری او کوم چې صحیح وی د (ص) توری ولیکی ؟
(غ) ۱: دا ستوا خط د ځمکی کره په‌دوبرخونده ویشلی. (ص) ۲: زمونږ
گرا ن هیوا دا فغا نستا ن دآسیا په‌برا عظم کی پروت دی.

۲- مقا یسوی یا مقا بلوی ا متحا ن: په‌دی ا متحا ن کی سوا لونه په‌دو ستونوکی دا سی لیکل کیږی چی یوته‌یی دسوا لونوا وبل ته‌یی د ځوا بونوستون وا یی، مثلا:

لاندی دوه‌ستونه‌مشا هده‌کړی دلومړی ستون دهری پوښتنی لپا ره په‌دوهم ستون کی ځوا ب شته‌دمربوطه سوا ل حرف دسوا ل په څنـگ کی ولیکی.

| دسوا ل ستون | دځوا ب ستون |
|---|---|
| (د) ۱- خدا ی (ج) | الف : زموردین دی |
| (ج) ۲- حضرت محمد (ص) | ب : قرآنکریم |
| (الف) ۳- ا سلام | ج : دا لله (ج) رسول دی |
| | د : یودی شریک نه‌لری |

۳- ا نتخا بی یا څلورځوا به ا متحا ن: دا دول ا متحا ن دوه‌برخی لری چی یوه‌یی سا قه او بله‌یی ته‌یی دځوا بوبرخه وا یی څوځوا به ا متحا ن دیوه‌صحیح او څوغلطوځوا بونولرونکی وی که‌دڅوځوا بو تعدا د زیا ت وی نوغلـــط را لی یی ژرمعلومیږی نودهرسوا ل لپا ره با ید ۳ یا ۴ ځوا به تعیین شی مثلا:

دهرسوا ل لپا ره څلورځوا بونه ورکړشویدی صحیح ځوا ب یی تعیین کړی؟

$\frac{1}{12} + \frac{3}{4} = ?$ الف:- $\frac{8}{12}$ ب:- $\frac{12}{7}$ ج:- $\frac{11}{12}$ د:- $\frac{10}{12}$

۴- خا نه‌خا لی ا متحا ن: په‌دی ا متحا ن کی دا متحا ن ورکوونکی څخه‌دا تقا ضا کیږی چی تش (خا لی) ځا ی ډک کړی نه‌دا چی ځوا ب ا نتخا ب کړی، ا ودغه‌تش ځا ینه‌دسوا ل په‌ا ول، مینځ ا وآخرکی وا قع کیږی. مثا ل : لاندی تش ځا یونه‌په‌منا سبوکلموډک کړی.

۱- ......... کا ملترین دټولوا دیا نودی. (ا سلام)

۲- زمونږ وطن د ......... په‌وخت په‌ا فغا نستا ن مسمی شو. (ا حمدشا ه‌با با)

## دآزموینی دنمروشبتول پەشقوا ونتا ئجوکی :

څرنگەچی پخوا دا متحا ن تعریف ـ ا رزیا بی تعریف دا متحا ن ا و ا رزیا بی ترمنځ توپیرا وپەهغوشیا نوچی با یدپەیوەا متحا ن کی پە نظرکی ونیول شی یوەبحث شوی دی .

نوڅرنگەچی ا متحا ن نمری لری نودشا گردا نودنتیجودمعلومولو لپا رەشقوا ونتا ئجوتەضرورت وی نوپەدې برخەکی ضروروی چی د شقو ا و نتا ئجوپەبا رەکی بحثا وځینەوکړوځکەشقی ا ونتا ئج هم د ا متحا ن یوەبرخەده .

پەدی ا سا س هغەمعلوما ت چی پەشقوا ونتا ئجوپوری ا ړەلری پە لاندی ډول دی :

۱ـ پەوسطی آ زموینەکی زدەکوونکودنومونولیکل پەشقوا ونتا ئجوکی.
۲ـ دحا ضری دضوا بطوترتیبول ا وحا ضری جمع کول ا ودحا ضری دضوا بطو پەشقەکی رسول) .
۳ـ دشقوروزمرەترتیب ا ونمرورسول.
۴ـ دنتا ئج ترتیب پەځلورنیم میا شتنی آ زموینەکی دټولگی دنگران لەخوا .
۵ـ دا طلاعنا موترتیبول .
۶ـ پەکلنی آ زموینەکی دپورتنیوموا دوترتیب پەدوەبا دری نقلەډول

الف ـ وسطی ا متحا ن :

کلەچی ځلورنیم میا شتنی آ زموینەرا نږدی شی، دمدرسی آ مر د مضمونوپەتعدا دشقی ا ویوەشقەدحا ضری,ضوا بطولپا رەهمدا را زدټولگی دشا گردا نوشمیرلەمخی نتا ئج د ټولگی نگرا ن تەورکوی دټولگی نگرا ن دشا گردا نونومونەدحا ضری لەمخی پەهغەکی لیکی ا وبیرتە ئی ادا ری تەتسلیموی. .

لەآ زموینی څخەیوەورځ دمخەدټولگی نگرا ن دتعلیمی کا ل لە پیل څخەترهمدغی ورځی حا ضری جمع کوی ا وپەهغەشقەکی چی دحا ضری دضوا بطولپا رەدەلیکی، یعنی شقەدا سی ترتیبوی چی سوب نا ســو ب مریض ا ورخصت پەهغەکی ولیکل شی وروستەدهغەشرح لیکی ا ولەا مضاء کولوڅخەوروستەهغەا دا ری تەتسلیموی. .

دحا ضری دضوا بطوشرحە :

( پەپورتەډول دشا گردا نوحا ضری دتعلیمی کا ل لەشروع یعنی

له / / نیتی تخه‌تر / / نیتی پوری زما په‌قلم جمع او په‌دی شقه‌کی درج شو .

دا متحان په‌لومړی ورځ دتقسیم اوقات سره‌سم دمدرسی آمر یا سرمعلم مضمونوا رشقه‌له‌هغوسوالونوسره‌چی تقریباً یوه‌هفته مخ کی اداری ته‌تسلیم شوی دی نشانی اوامضاء کوی اوممتحن دممیز په شمول دآزموینی صحنی ته‌روانیږی اودآزموینی په‌اخیستلوپیل کوی وروسته‌ممتحن تحریری سوالونوته‌نمری ورکوی اوهغه‌دطلابودپارچی له‌مخی دشقی په‌تحریری ستون کی لیکی بیاتقریری امتحان دممیزپه حضوراخلی اودتقریری نمری په‌خپل ستون کی لیکی وروسته دواړه نمری سره‌جمع اودمجموعی په‌ستون کی یی لیکی اوپه‌ملاحظاتو کی نمری په‌حروفولیکل کیږی .

مثلاً دیوه‌زده‌کوونکی نمره‌دپښتومضمون په‌تحریری کی ۴ اوپه‌تقریری کی ۳ ده دواړه‌مجموعه ۷ کیږی اوپه‌ملاحظاتوکی(پوره‌اوه ) لیکل کیږی، که امتحان یوازې تقریری وی دتحریری ستون دممتحن لخوا قیداونمری دتقریری په‌ستون کی لیکل کیږی وروسته‌ممتحن په‌شقه‌کی شرح لیکی دممیزله‌امضاء څخه‌وروسته‌هغه‌اداری ته‌تسلیموی.

په‌شقوکی دشرحی لیکل :

" په‌پورته‌دول د( ) مضمون امتحان دممیزپه حضور واخیستل شواودشاگردانودسویی اولیاقت مطابق نمری ورکړشوی اوله قلم‌خوری، گل اوتراش څخه‌پرته‌اداری ته‌تسلیم شو )

که‌چیری کومه‌نمره‌داسی قلم خوره‌شی چی کومه‌اشتباه‌پری و شی نوممتحن په‌ملاحظاتوکی امضاء کوی اودنمری دصحیح والی تصدیق کوی، په‌همدی ترتیب امتحان هره‌ورځ دوام کوی اوممتحن مضمونوا ری شقی هره‌ورځ دمدرسی آمرته‌سپاری اوهغه‌یی په‌تقسیم اوقات کی ننبه‌کوی ترڅوپوه‌شی چی څوکسانوخپلی شقی اداری ته‌تسلیم کړ ی دی .

کله‌چی دامتحان وروستی پای ته‌ورسیږی دمدرسی آمرمضمونوا ر شقی چی په‌یوه نقله‌دول ترتیب شوی دحاضری‌ضوابطوسره‌یوځای د هر ټولگی نگران ته‌سپاری اوهغه‌یی په‌نتائجوکی لیکی وروسته‌دهر زده کوونکی نمری جمع کوی که‌چیری کوم شاگردپه‌یوه‌یاڅومضمونونو کی له ۴ نمروڅخه‌کمی اخیستی وی ناکام شمیرل کیږی، دکامیابوشاگر دانونمری دنتائجوله‌مخی بیرون نویس کوی اودجگی نمری شروع د

طلابو درجه بندي کوی که چیری د دویا دریو تنو زده کوونکو د نمرو مجموعه یو شان وي کوم شاگردچي غیرحاضري یي کمه وي په درجه کي مخته کیږي او که چیری حاضري یي هم یو شان وي دهغو اخلاق په نظرکي نیول کیږي او که په اخلاقوکي هم توپیر موجود نه وو کوم شاگردچي په حاضري کي مخکي وه په درجه بندي کي هم مخکي نیول کیږي وروسته دتولگي نگران دنتیجو خلص چي دهري پاڼي په پورتني برخه کي دي خانه پوري کوي او نتائج شرحه په لاندي ډول ليکي او هغه امضاء کوي.

( په پورته ډول مجموعه نواروشقوله مخي دشاگردانو نمري اودحاضري دضوابطو دشقي له مخي حاضري زما په قلم په نتائج کي ثبت شوي او ( ) تنو دا خله قعدا دخه ( ) تنه کامیاب او ( ) تنه ناکام دي قلم خوري، گل اوتراش نه لري والسلام )

دنتائج له ترتیب نه وروسته دنگران لخوا نمري اطلاعنامو ته رسیږي لومړي یي نگران امضاء کوي او وروسته هغه آمر یا دمدرسي سر معلم امضاء کوي بیا یي شاگردانوته ورکوي او شاگردانو ته هدایت ورکوي ترڅو خپلي اطلاعنامي کورته یوسي او هغه په خپل پلار یا ورور امضاء کړي وروسته شاگردان خپلي اطلاعنامي خپل نگران ته سپاري ترڅو په کلني آزموینی کي له هغو څخه کار واخلي .

ب – کلني امتحان :

په کلني امتحان کي عینا دڅلورنیم میاشتني آزموینی په شان عمل کیږي، خو په کلني آزموینی کي حاضري دتعلیمي کال له شروع څخه دکال تر پایه جمع کیږي او په شقه کي رسول کیږي کوم شاگردان چي دحاضري فیصدی یي نوی پوره کړي دحاضري ضوابطو په شقه کي محروم لیکل کیږي اودهمدي شقي له مخي نگران په تولو شقوکي دممتحن د کارد آسانتیا لپاره محروم لیکي ترڅو دمحروم او غائب فرق وشي، او هغه شاگردان چي شامل اودامتحان په ورځوکي موجودنوي غائب د امتحان لیکل کیږي.

### دڅلورنیم میاشتني اوکلني آزموینی توپیر

١– په څلورنیم میاشتني آزموینه کي شقي اونتائج یو نقله او په کلني کي شقي دوه نقله نتائج دوه یا دري نقله کیږي.

٢– څلورنیم میاشتني آزموینه نصف مجموعه نلري اوکلني آزموینه

نصف مجموعه‌لری که‌کوم شاگردنصف مجموعه‌پوره‌نکړی‌نا کام شمیرل کیږی.

۳- ثلورنیم میاشتنی آزموینه‌مشروطی اومحرومی نلری کلنی آزموینه‌دوا ړه‌لری.

۴- په‌ثلورنیم میاشتنی آزموینی‌کی‌که‌یوشاگردپه‌یوه‌مضمون کی هم له ۴ نمزوڅخه‌کمی اخیستی وی ناکام دی.

۵- که‌چیری په‌کلنی آزموینه‌کی دیوشاگردا وسط له۴ نمروڅخه‌کم وی دیومضمون اوکه‌په‌دومضمونونوکی کم وی ددومضمونومشروط شمیرل کیږی.

۶- که‌چیری په‌کلنی آزموینه‌کی دیوشاگردا وسط په‌دری مضمونونو کی له‌ثلوروڅخه‌کم اوپه‌یوه‌مضمون کی نیم نمری ته‌ضرورت ولری که چیری ۶۰% دنمرومجموعه‌یی پوره‌کړی وی په‌یوه‌مضمون کی نیم نمره‌ورکول کیږی اوددومضمونومشروط شمیرل کیږی.

۷- دثلورمیاشتنی اوکلنی آزموینودهرمضمون نمری جمع اوپه (۲) ویشل کیږی اوحاصل یی دا وسط په‌ستون کی لیکل کیږی.

۸- دشاگردانوکلنی درجه‌بندی هم دا وسط له‌مخی کیږی.

کله‌چی نتائج په‌دوه‌نقله‌یا دری نقله‌دول ترتیب شونگران د هغوشرحه‌لیکی او امضاء کوی یی او نمری دشاگردانوا طلاعنا موته رسوی لمړی هغه‌نگران او بیا دمدرسی آمریا سرمعلم امضاء کوی، او په کوم ورځ چی دنتائجودا بلاغ لپاره‌تیا کل شوی وی په‌هم هغه‌ورځ شاگردانو ته‌ورکول کیږی، کله‌چی نتائج دنگران لخوا داری ته‌تسلیم شو د مدرسی دآمریا سرمعلم لخوا دری کسیزهیئت ټاکل کیږی ترڅود ثلور نیم میاشتنی آزموینی شقی له‌نتائجوسره او همدا راز دکلنی آزموینی شقی له‌شقوا ونتائجوسره‌تطبیق کړی، که‌چیری کوم اصلاح په نتائج کی راځی دهیئت لخوا امضاء کیږی دهیئت دتطبیق او امضاءڅخه‌وروسته دسرمعلم لخوا دصنف بندی‌په‌دول چی دنتائجوله‌مخی ترتیب شوی په لمړی مخ کی له‌نتائج سره‌ضمیمه‌کوی او هغه‌دکتاب په‌دول جوړوی او هغه‌رسماً له‌مضمونوا رشقو سره یوځای مربوطه مرا جعوته‌لیږی.

دا دی دشقوا ونتائجویوه‌نمونه.

ب : دیوه ښوونکی صفات د درس په ارتباط:
۱- یوښه ښوونکی په خپل درسی پلان کی لاندی ټکی په نظر کــــی
وساتی:
- مشخص هدف ولری.
- دزده کوونکو آماده کول ددرس لپاره (دټولګی ترتیب او تنظیم)
- دښوا ومناسبوروشوتوټا کل په تدریس کی.
- ددرسی موادوانتخاب اوپه درس کی په ښه ډول په کارورل.
- زده کوونکوته په درسی فعالیتونوکی برخه ورکول.
- دزده کوونکوفردی اختلافات په نظرکی نیول.
- خپل عالم ته عملی بڼه ورکول.
۲- په مضمون اوموضوع باندی حاکمیت ولری.
۳- په ټولګی کی بایدنظم اودسپلین اودشاګردانوعلاقه په تدر - یس کی وساتی.
۴- زده کوونکوتشویق اوکله کله چی لازم وی تنبیه کړی.
۵- په مناسب آوازواضح اودزده کوونکوله سومی سره سم تدریـــس وکړی.
۶- دتعلیم اوتربیی دقوانینوا ومقرراتومراعات وکړی.
ج : دیوه ښوونکی مسئولیتونه ددرس په څنګ کی دشاګردانودتربیی په ارتباط :
۱- دزده کوونکوپه ژوندکی مثبت بدلون راوستل :
- زده کوونکی صالح اوداسلامی روحیی سره سم خپلی ټولنـــی ته تربیه کول.
- زده کوونکی دخپلی کورنی اواجتماع لپاره مفیداو سالـــم روزل.
- په زده کوونکی دهیواددمحبت اوخدمت روحیه پیداکول.
۲- دمدرسی له مقرراتوسره دزده کوونکوآشناکول.
څرنګه چی ښوونکی ډیرزیات صفات لری نوموږ نشوکولای چی په دی خولیکوکی دهغه ټول صفات بیان اوترڅیړنی لاندی ونیسو، نو محترم ښوونکی بایدخپلودرندومسئولیتونوته خصوصاً " دهجرت او اسلامـــی انقلاب په اوسنیوشرایطوکی ښه توجه ولری اودشهیدانواومهاجرینـو د اولادونوپه ښه او اسلامی روزنه کی دخدای (ج) درضا منډی پخاطردقدر و پر خدمت وکړی .

# دوهم فصل

# تربيتي او آموزشي اهداف

لکه څرنګه چې ليدل کيږي دژوند ټول امورات چې مونږ او تاسو بې سرته رسوو په هغه کې اهداف موجود وي خو هلته دا فعاليتونه او اجراءات ښه موءثر واقع کيدلای شي چې دهغو اهداف مشخص دقيق، مکمل او ښه واضح بيان شوي وي.

کله چيرې يو شخص په آګاهانه توګه په خپل هدف يا اهدافو ته درسيدو په خاطر کار کوي نو د خپل کار څخه راضي، خوشحاله او مطمئن وي، که بر خلاف دده اهداف ګنګ، ناتمام او غير مشخص وي نو په خپل کارکې به ناراحه بې اعتماده او دزياتي ستړيا احساس کوي په همدې ډول په يوه اسلامي جامعه کې دتعليم او تربيې موضوعات چې ديوې جامعې ياټو – لنې دوګړو لپاره دخيرا ونجات وسيله ګڼل کيږي، نو که چيرې ددې مو – ضوعاتو اهداف معلوم او په صحيح ډول نه وي منسجم شوي، نو ښوونکي او شاګردان به دوا ړه بې مطلبه روان او دسترپا، بې اعتمادي نا اميدي احساس کوي، نو ددې لپاره چې اهداف په تعليم او تربيه کې اولنۍ ضرورتونه تشکيلوي ښه ښا ده چې دهر څه دمخه دا هدافو د مشخص کولو په هکله استادان معلومات پيدا کړي، او په دې پوه شي چې هغوته په څه ډول خپل پلان کې ځای ورکړي ترڅو دبا هدفه استادانو په ډول خپل وظايف سرته ورسوي نو دلته لازم ګڼم چې دتعليم او تربيې د اهدافو تعريف، اقسام، پارتونوا وهم دهدف دليکلو ذکروشي، ترڅو ګران

ښوونکي له هغو څخه په استفادې سره خپل وظایف په ښه توگه سرته ورسوي .

## دهدف تعریف :

هدف په لغت کې مقصدا ومرام ته وائي اوپه اصطلاح کې دیوه کار مخکې سنجول شوی نتیجې ته هدف وايي .

هدف په عمومي ډول دوه قسمه ده

۱ـ مقدس اهداف

۲ـ نامقدس اهداف

**۱ـ مقدس اهداف:** هغه اهداف دي چې په اسلامي نتا ئجوبا ندې ختميږي اودالله (ج) درضا حاصلول په کې مقصدوي. دمثال په ډول دهر هغه آموزشي اوتربيي کاراوفعاليت سرته رسول چې دهغه په نتيجه کې دالله (ج) رضا مندي حاصله شي لکه دشاگردانو په اسلامي روحيه سره روزل اوتربيه کول، دمقدس اهدافو له جملې څخه دي .

**۲ـ نامقدس اهداف :** هغه هدفونه دي چې په غيراسلامي شيطاني او بشري ضدنتائجوباندې تماميږي، اومرام په کې يوازې د ماديات حاصلول، داشخاصوراضي ساتل اودمادي اونفساني خواهشاتو اشباع اوپوره کول وي .

په انساني ټولنه کې ډول ډول فعاليتونه او عمليات دراز، راز اهدافو لپاره کيږي چې دهغوله جملې څخه يوه هم دتعليم اوتربيې عمليه ده .

داچې ښوونه اوروزنه دانساني ټولنې يوه کلي غوښتنه ده او هر انسان ته تعليم د غذا په څير ضروري دی(تعليم اسلامي فريضه ده ) او زمونږ دبحث موضوع هم ښوونه اوروزنه ده ، نو ځکه دتعليمي اهدافو په باره کې بحث کوو .

څرنگه چې تعليمي اهداف پيراقسام لري نو مونږ دلته يوازې د تعليمي اهدافو دوولونه دوسعت له مخې څيړو :

دوسعت له مخې دهدف ډولونه



۱- نهایي هدف: دیوه پلان شوی کارآخرنی مطلوبی نتیجی ته نهائی هدف وایی.

لکه دا سلامی تعلیم او تربیی نهایی هدف دادی چی یوه سالمه اسلامی ټولنه تشکیل شی او دسالمی اسلامی ټولنی دتشکل لپاره د سالموافرادوتربیه کول په کاردی ترڅو چه دخدای(ج) د رضا حاصلول (نهایی هدف) ترلاسه شی.

۲- عمومي هدف: دیوی موضوع پیش بینی شوی عامی نتیجی ته عمومی هدف وایی لکه دیوه مضمون - کتاب - باب - او فصل دتدریس عامه نتیجه.

۳- خصوصي هدف: دیوی موضوع مخکی سنجول شوی خاصی نتیجی ته خصوصی هدف وایی لکه دریاضی په مضمون کی دصفرحخه تر ۴ پوری د اعدادو شمیرل، دپشتو په مضمون کی(ح) حج، ددنیات په مضمون کی د درس موضوع اودس او دتعلیم القرآن په مضمون کی حرکات دی چی دا هر یوه خاصه درسی موضوع ده، او هر یوئی خاص آموزشی هدف لری.

د آموزشي هدف برخې: هرآموزشی هدف دری عمده برخی لری، چی په لاندی گراف کی ښودل کیږی:

د هدف برخی




۱- شرط: هغه محدوده ده چی په هغه کی شاگردان یوه سلسله فعالیتونه سرته ورسوی.

۲- سلوک: دهغو فعالیتونو مجموعه ده چی دشاگرد څخه یی د اجراءاتو توقع کیږی. لکه لوستل، لیکل، معنی کول.....

۳- معیار: دا هغه درجه ده چی دهغی په اساس باید سلوک سرته ورسیږی یعنی دیوه فعالیت دڅومره درست او صحیح والی اجراکولو درجی ته معیار ویل کیږی.

## إِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّمًا



بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله رب العالمين والصلوة والسلام على رسوله الكريم ه
يرفع الله الذين آمنوا منكم والذين اوتوا العلم درجات ط

سریزه :

محترمو استادانو وعزت مندوښوونکو! دغه مقدس مسلک چي تاسو دخپل ځان لپاره انتخاب کړی دی، آیا فکرموکړیده چي ولي ښوونکی یاست؟ اویاداچي ولې غواړئ ښوونکی واوسئ له خپل ځان سره دیوه با درده ښوونکی په حیث فکروکړئ اووګورئ چي دښوونکی (روزنې ټول مسلکي مضامین اوموضوعات چي په دې رساله کې درج اولیکل شوي دي ددی لپاره زده کوی چي څرنګه دتدریس اودهغه دپرمختګ لپاره آماده شي :

تعلیم اوتربیه دانسانانوله مهموضروریاتوڅخه شمیرل کیږی اوله بلی خوا دښوونکومسلکی تجارب له ټولومهم اوضروري عنصرونه د ښوونکودمسلکي معلوماتولپاره قبول شویدی، همدارازدنن سبا د ښوونکودتربیې اصلی هدف اومقصددشاګردانوله مکملی اسلامی تربیې یعنی جسمي تربیه، ذهنی هیجانی، اجتماعی اودهغودیني اسلامی لار

ښوونې څخه عبارت دی.

په همدې منظور دهنګو دتعلیم اوتربیې تربیوی هیئت اواستادانوتقریباً د دوکالوپه دوران کی دښوونکو د تربیې په برخه کی ډېرزیارګاللی دی، اوتراوسه یې څوځلې سمینارونه د جهادی تنظیمونودمدرسودمهاجرینوپه کمپونو- دینی تعلیمات، جهادي سواد، اوهمداراز دتیچرترېنر (دښوونکومربي) په برخه کی یی د سویدن او ( ) دکمیټولپاره کورس ورکړشوی دی چی له افغانستان څخه وروسته دافغانستان په آزادوسیموکې دښوونکودمربي په حیث وظیفې سرته رسوی .

په دی اساس ویلای شوچی په اوسنی حساس حالت کی د معلمینو مسلکی لارښوونه اوآمادګی ډېرا همیت ورده . ځکه زمونږ دګران هیواد افغانستان خلک دوحشي روسې ښکیلاکګرو اودهغه دېی دینه وملحدوغلامانو (خلقیانو اوپرچمیانو ) دظلم او وحشت له لاسه په ډېروسختو شرایطو کی ژوندتیروی، اوزیات شمیرعالمان، مشایخ، دانشمندان، په خاص ډول استادان اوتجربه لرونکی ښوونکی په شهادت رسیدلی او یا یی د خپلې اسلامی عقیدې په اساس د زندان په تورو ټنجروکی بند کړی دی، اوځینو یې دخپلې خاوری د آزادی، ددین، ننګ اوناموس د ساتنی په منظور په مسلحانه جهاد پیل کړی دی اودقطبی خرسانو (روسانو ) او د هغوی دبی دینه مزدورانو او وطن پلورونکوپه ضد دجهاد مقدس او تودو سنګرونوته تللی دی. نوددی ضایعی دجبران لپاره لازمه ده تر څو د دی مظلوم ملت دماشومانو دا سلامی روزنی لپاره دتربیه او دهغوی مسلکی مهارتونه دمعلمی په مسلک کی زیات کړو، نودهنګو دتعلیم اوتربیې ددفتردا ستادانو په شمول دراتلونکی نسل دا سلامی سالمی تربیې لپاره جدا وجهد کړی او دانسانیت له لوی دښمن( دجهل اونا پوهی) په مقابل کی یی عملا اقدام کړیدې چی ددې مشکل د حل لپاره دښوونکودروزنې سمینارونه جوړ اودضرورت وړ مسلکي مواد یې دهغوی لپاره تیار کړی دی همداراز یی دجهادی تنظیمونودمقاماتو دغوښتنو په اساس دمدارسو (۳۶۷۷۵) تنه شاګردانوته درسی کتابونه او درسی مواد د خیمو، ترپالونو په شمول کومکونه رسولی دی.

اومونږپوره باور لروچې زمونږ ځوانان، مبارزاومجاهدښوونکی په اوسنیوسختوشرائطو کی چی دهجرت اوبی وطنۍ په حالت کی شپې او ورځې تیروي، دخپلو علمي، مسلکي تجربوڅخه په استفاده دا سلامي تعلیم

اوتربيې ټول اساسات اودجهادي ښوونې اهداف په ننئيوشرا ئطوکی د تدريس له لارې اقدام وکړی اودطاقت اوتوان په اندازه ددوی په تدريس کې مثبت بدلون راشی ..

( په ټولنه کې داسلامی انقلاب دبريا لېتوب په هيله )

(ومن الله التوفيق)

( دهنگودتعليم اوتربيې استادان )




# دجهادي تنظيمونو دمدارسو دښوونکو لپاره مسلکي سيمينار



I R C

آی . آر . سی

## دهڅونکو دښوونې او روزنې پروګرام

INTERNATIONAL
RESCUE
COMMITTEE

کال ۱۳٦۸ هـ ش — 1989 - م




# د جګړې ځپلو ښوونځیو د ملا رسوونکو لپاره مسلکي سیمینار

IRC

آی . آر . سی

# د هلکو د ښوونې او روزنې پروګرام

INTERNATIONAL
RESCUE
COMMITTEE

کال ۱۳٦۸ هـ ش 1989 م

ترتیب کوونکی :

دهنگودتعلیم او تربیی دپروگرام استادان !
گل حبیب ، محمدسمیع ، محمداسحق، عبدالهاشم، شیرملوک ، محمد قاسم، ولی محمد، عبدالواسع ، محمدقاسم ، وهاج ، عبدالحبیب ، عبدالوکیل، محمدنعیم و میرزا محمد.

مسوءل همکار :- استاد محمدسمیع

دچاپ شمېر:
کال : ۱۳٦۸ هجري شمسي
مطبعه: تاج محل کمپنی

# فهرست

سرلیکونه | مخ

| سرلیکونه | مخ |
|---|---|
| ۲-عمومي پلان : | ۱۷ |
| - دعمومي پلان دجوړولو اهمیت اوګټې . | ۱۸ |
| - دعمومي پلان نمونه ای جدول . | ۱۹ |
| - د درسي پلانونو نمونې . | ۲۳ |
| څلورم فصل : اصول تدريس : | ۳۳ |
| - داصول تدریس تعریف | ۳٤ |
| - دتدریس دنوی اوزړې طریقې ترمنځ توپیر. | ۳٤ |
| - دسوال اوجواب روش | ۳٦ |
| - دمسابقې روش | ۳۷ |
| - دنقش لوبولو روش | ۳۸ |
| - دګروپي کار روش | ٤۱ |
| پنځم فصل : دټولګي ترتیب ، تنظیم او دمشکلاتو حل کول : | ٤۳ |
| ۱- دټولګي ترتیب او تنظیم ، | ٤۳ |
| ۲- په ټولګي کې دمشکلاتو حل کول : | ٤۵ |
| شپږم فصل : درسي مواد : | ٤۷ |
| - د درسي موادو تعریف . | ٤۷ |
| - د درسي موادو تهیه کول . | ٤۸ |
| - هغه اساسي ټکي چې د درسي موادو داستفادې په وخت کې باید په نظرکې ونیول شي . | ۵۰ |
| اووم فصل : رواڼشناسي ( سلوک پېژندنه ) : | ۵۲ |
| - دروانشناسی تعریف | ۵۳ |

| سرلیکونه | مخ |
| --- | --- |